شماره مضمون صفحه

Ÿ

**الحمد لله رب العالمين، اللهم صلِّ على محمد وآله وسلم وبارك، اللهم إنَّا نسألك من الخير كله عاجله وآجله ما علمنا منه وما لم نعلم، ونعوذ بك من الشر كله عاجله وآجله ما علمنا منه وما لم نعلم، اللهم إنَّا نعوذ بك من فتنة القول والعمل، آمين اللهم آمين، أمَّا بعد:**

دوزخ هغه ځای دی چې الله د کفارو او د هغه کسانو لپاره تیار کړی دی چې د شریعت له منلو مخ اړوي او د الله د رسولانو تکذیب کوي الله تیار کړی دی چې پدې کې هغه کسانو ته سزا ورکړي چې هغوی په دنیا کې په سمه لاره نه وي تللي الله به پدې کې مجرمان اچوي او دېته چې څوک ورشي دا ډېر لوی تاوان دی او ډېره لویه ناکامي ده انسان دنیا ته ددې لپاره راغلی دی چې دلته عملونه وکوي او ددې ټولو عملونو نتیجه ده ته په آخرت کې ورکړل شي خو څرنګه چې د انسان سره شیطان دی هغه یې وخت په وخت ګمراه کوي نو الله ورته وخت په وخت پیغمبران را لېږلي دي چې خلکو ته سمه لاره وښيي او د پیغمبرانو د طلایي لړۍ آخره کړۍ د رسول الله ﷺ راتلل وو الله ورته تل پاتې معجزه قرآن کریم ورکړی دی څرنګه چې رسول الله ﷺ یو انسان وو نو د هغه د رحلت نه وروسته به دا قرآن کریم او د رسول الله ﷺ مبارک احادیث د خلکو لپاره د لارې چراغ وي او وخت په وخت الله علماء پیدا کوي چې هغوی په قرآن کریم او په احادیثو باندې پوه وي او خلکو ته یې بیان کړي او د خلکو لار ښونه وکوي په قرآن کریم او په احادیثو کې په ډېرو ځایونو کې د دوزخ ذکر ددې لپاره راغلی دی ترڅو خلک ورنه خبر شي او لداسې عملونو څخه ځان وساتي چې انسان دوزخ لوري ته کش کوي او پدې وړوکې

رساله کې به زه لکه دمخکې کتابونو په شان صرف معتمد او مستند څه روايات او آيتونه د دوزخ په اړه ستاسې په وړاندې کېږدم.

## د دوزخ ځينې نومونه

دوزخ په قرآن کريم په مختلفو نومونو سره ياد کړل شوی دی:

## جهنم

الله فرمايي: وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيراً مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ لَهُمْ قُلُوبٌ لا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لا يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لا يَسْمَعُونَ بِهَا أُولَئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ أُولَئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ. [1]

ترجمة: او خامخا په تحقيق پيدا کړي دي مونږ د پاره د جهنم (دوزخ) ډېر کسان له جن ((پېريانو)) او له انسانانو چې دي دوی لره (داسې بې معنی) زړونه چې هېڅ نه پوهېږي دوی په هغو سره (حق له باطله) او دي دوی لره (داسې بې فايدې سترګې چې نه ويني دوی په هغو سره (نښې د قدرت) او دي دوی لره (داسې بې کاره) غوږونه چې نه آوري په هغو سره (آيتونه د الله) دغه کسان په شان د چارپايانو دي (د نفساني امورو په اتباع) بلکه دوی (چې مکلفان دي) ډېر ګمراهان دي (له چارپايانو ځنې) دغه کسان هم دوی دي غافلان (کاملان په بې خبرى کې)

## الجحيم

[1] سورة الاعراف آية ١٧٩

ﷲ فرمايي : الَّذِينَ يَحْمِلُونَ الْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهُ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيُؤْمِنُونَ بِهِ وَيَسْتَغْفِرُونَ لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَحْمَةً وَعِلْماً فَاغْفِرْ لِلَّذِينَ تَابُوا وَاتَّبَعُوا سَبِيلَكَ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ. [1]

ترجمة: هغه كسان (له ملائكو) چې پورته اخلي عرش او هم هغه (فرښتې) چې چار چاپير دي د عرش تسبيح وائي سره د حمده ثناء د رب د دوی او ايمان ئې راوړی دی په دغه (ﷲ) او مغفرت غواړي (له ﷲ نه) هغو كسانو ته چې ايمان ئې راوړی دی (نو وائي چې) اې ربه زمونږ رسيدلی ئې ته هر څيز ته له جهته د رحمته بخشش او علمه پس مغفرت وكړه هغو كسانو ته چې توبه ئې ايستلې ده او متابعت ئې كړی دی د لارې ستا او وساته دوی له عذابه د دوزخ نه.

## الحطمة

ﷲ فرمايي : وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْحُطَمَةُ . [2]

ترجمة: او څه شي پوه كړی ئې ته څه شی دی ماتوونكي سوزوونكې د هرشي.

---

[1] سورة غافر (المؤمن) آية ٧
[2] سورة الهمزة آية ٥

## السعير

الله فرمايي : وَلِسُلَيْمَانَ الرِّيحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَرَوَاحُهَا شَهْرٌ وَأَسَلْنَا لَهُ عَيْنَ الْقِطْرِ وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِإِذْنِ رَبِّهِ وَمَنْ يَزِغْ مِنْهُمْ عَنْ أَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيرِ. [1]

ترجمة: او (مسخر كړى مو ؤ) سليمان ته باد (د) سبائي (منزل) د هغه (د) يوې مياشتې او (د) بيګائي (منزل) د هغه د يوې مياشتې (لاره) وه او بهولې مو وه د ده د پاره چينه د ويليو كړل شويو مسو او (مسخر كړى مو ؤ ده ته) له پېريانو هغه څوك چې كار به يې كاوه په مخ د ده كې په اذن (حكم) د رب د ده او هرڅا چې سركشي وكړه له دوى له امره زمونږ (او د سليمان اطاعت به يې نه كاوه) نو وبه څكوو مونږ هغه ته (په آخرت كې) له عذابه د اور.

## السموم

الله فرمايي : وَالْجَانَّ خَلَقْنَاهُ مِنْ قَبْلُ مِنْ نَارِ السَّمُومِ. [2]

ترجمة: او جان (پلار د پېريانو) پيدا كړى دى مونږ هغه پخوا له (انسانه) له اوره بې لوګي څخه.

---

[1] سورة سبا آية ١٢

[2] **سورة الحجر آية ٢٧**

# النار

الله فرمايي : وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ اجْعَلْ هَذَا بَلَداً آمِناً وَارْزُقْ أَهْلَهُ مِنَ الثَّمَرَاتِ مَنْ آمَنَ مِنْهُمْ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ قَالَ وَمَنْ كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُ قَلِيلاً ثُمَّ أَضْطَرُّهُ إِلَى عَذَابِ النَّارِ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ. [1]

ترجمة: او (ياد كړه اي محمده ﷺ!) هغه وخت چې وويل ابراهيم اي ربه زما وګرځوه دا ښار (چې كعبه مې په كې ودانه كړې ده) ځاى د امن او روزي وركړه اوسيدونكو ته ئې له هر راز (قسم) مېوو نه هر هغه چا لره چې ايمان ئې راوړى دى له دوى ځنې په الله او په ورځ آخره باندې (چې د قيامت ورځ ده) وفرمايل (الله ) او هر څوك چې كافر شو نو فائده به وركړم هغه ته لږه بيا به په زور (او خوارئ) بوزم دې عذاب د اور (د دوزخ) ته او بد ځاى د ورتلو دى (هغه اور) .

# سجين

الله فرمايي : كَلَّا إِنَّ كِتَابَ الْفُجَّارِ لَفِي سِجِّينٍ . [2]

ترجمة: داسې په كار نه ده (او نه دې كوي ډېر اخيستل او لږ وركول په تجارت كې او نه د كوي غفلت له قيامت نه) بېشكه ليكلى شوى اعمال د فاجرانو (كافرانو) خامخا په سجين كې دي.

# سقر

الله فرمايي : يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلَى وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ. [3]

1 سورة البقرة آية ١٢٦
2 سورة المطففين آية ٧
3 سورة القمر آية ٤٨

ترجمة: هغه ورځ چې را کش کړل به شي دوی په اور (د دوزخ) کې په مخونو د دوی (وبه ویل شي دوی ته زجراً چې) و څکئ تاسې (مزه) د مس کولو رسېدلو (د اور) د دوزخ.

## هاوية

الله فرمايي : وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ (8) فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ (9).[1]

ترجمة: او هر څه هغه څوک چې سپک شي وزن (د عملونو یا اعمال) د ده نو مور د ده (ځای د اوسېدلو د ده) به هاویه وي .

## د دوزخ طبقې

په دوزخ کې اوه طبقې دي چې ځینې یې سختې او ځینې یې اسانې دي خو په دوزخ کې چې ډېره اسانه هم ده داسې عذاب لري چې په دنیا کې د داسې عذاب تصور هم څوک نشي کولی او هغه اوه طبقې په لاندې ډول دي :

[1] سورة القارعة

# لمړی طبقه جهنم

په دوزخ کې لمړی درجې ته جهنم ویل کیږي ددې درجې عذاب داسې وي چې دلته ځوک ورشي د عذاب د سختي له امله د هغه د مخ غوښې ختمیږي او توئیږي او دا په ټول دوزخ کې سپکه او د کم عذاب لرونکې طبقه ده خو بیا هم داسې عذاب پکې دی چې د انسان تر برداشت ځو چنده زیات دی .

# دوهمه طبقه لظی

د دوزخ دوهمې درجې ته لظی ویل کیږي دا برخه به د دوزخیانو لاسونه او پښې خوري او داسې عذاب به وي چې د انسان اندامونه به د هغې د برداشت طاقت نلري او هغه به سره ټولیږي او سوزیږي به او دې ته به ټول هغه کسان وروستل کیږي چې د الله د توحید او د رسول الله ﷺ د هدایاتو د منلو ځخه یې مخ اړولی وي الله ددې طبقې ذکر کوي او فرمایي :

كَلَّا ۖ إِنَّهَا لَظَىٰ (15) نَزَّاعَةً لِّلشَّوَىٰ (16) تَدْعُو مَنْ أَدْبَرَ وَتَوَلَّىٰ (17) وَجَمَعَ فَأَوْعَىٰ (18) .[1]

ترجمة : بېشکه دا (اور د دوزخ) لمبې وهونکی دی ویستونکی دی (له کفارو ځخه) د اینې (یا د پوستکو د لاسونو او د پښو د دوی) را بولي (دا دوزخ) هغه ځوک چې شا ئې کړې وي او مخ ئې ګرځولی وي (له ایمانه) او ټول کړی ئې وي (مال) نو ساتلی ئې وي (د الله حق ئې ترې نه وي ورکړی) .

[1] سورة المعارج

## دریمه طبقه سقر

دا هم په دوزخ کې یوه طبقه ده دې ته چې دوزخیان ورشي د هغوی په هډوکو به غوښه نه پاتې کیږي ټوله به ورځخه خوړله کیږي او ختمیږي .

## څلورمه طبقه الحطمة

په عربي کې حطم ماتولو ته ویل کیږي او دېته چې دوزخیان ورشي هډوکې به یې پرې ماتوي او زړونه به سوزوي الله ددې طبقې صفت کړی دی چې ددېنه به داسې سپرمیغي بادیږي لکه تعمیرونه او پدې کې به دوزخیان داسې ژاړي چې اوښکې یې ختمې شي بیا به یې له سترګو نه د اوښکو په ځای وینې ځي او بیا به وینې ختمې شي بیا به ترېنه زوې او زېړې اوبه ځي .

## پنځمه طبقه جحیم

دا ډېر زیات ګرم دی او پدې کې ګرمې سکروټې دي او پدې کې یوه سکروټه له ټولې دنیا لویه وي او د ګرمي په لحاظ یوه طبقه هم پدې پسې نه رسیږي .

## شپږمه طبقه السعیر

پدې کې به دوزخیانو ته د عذاب لپاره ډېر زیات قسمونه عذابونه وي د یو روایت له مخې پدې کې به په زرګونو کوټې وي او په هره کوټه کې به دری سوه ډوله عذابونه وي او پدې کې به یوه دروازه وي چې باب الحزن یعني د خفګان دروازه ورته ویل کیږي او کله چې دا را خلاصه شي په دوزخ کې چې څومره دوزخیان دي ټول به زیات خفه شي

## اومه طبقه الهاوية

دا هغه طبقه ده چې (الله د مونږ د ټولو نه وساتي) چې څوک هم یو ځل ور وغورځیږي کله هم بیا ترینه نه راوزي او پدې ځای کې یو کوهی دی چې بئر الهباب ورته ویل کیږي لدې نه یو ډول اور راوزي چې د ټول دوزخ خلک لدې اور څخه پناه غواړي .

## دوزخیانو ته به څرمنې ور بدلول کیږي

الله فرمايي : إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ بِآيَاتِنَا سَوْفَ نُصْلِيهِمْ نَارًا كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ بَدَّلْنَاهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا لِيَذُوقُواْ الْعَذَابَ إِنَّ اللّهَ كَانَ عَزِيزًا حَكِيمًا (56) .[1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران (منکران) شوي دي په آیتونو زمونږ ژر به ننباسو مونږ دوی اور ته (چې پکې سوزولی شي) هر کله چې پاخه شي پوستکي د دوی (په اور کې) بدلوو مونږ دوی ته پوستکي غیر له هغو له پاره ددې چې و څکي دوی عذاب بېشکه چې الله دی ښه غالب قوي (د احکامو په انفاذ) لوی حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي) .

## منافقین به په ښکتني دوزخ کې وي

هغه کسان چې نفاق کوي په ښکاره کي ځان مسلمان ښکاره کوي او په پټه کې یې مینه د کفر سره وي د کفارو په کامیابي خوشحالیږي او د کفارو په مقابل کې د مسلمانانو کمزوري ورته ښه ښکاره کیږي د هغوی د پاره د دوزخ ښکتنی برخه ده الله

[1] سورة النساء

فرمايي : إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا (145).[1]

ترجمة : بېشکه منافقان دي په طبقه ډېره ښکته کې له اوره (د دوزخ) او له سره به نه مومې ته دوی ته مددګار (له عذابه خلاصوونکی).

## دوزخيان به بېرته د ګرځېدو ارمان کوي

وَلَوْ تَرَىَ إِذْ وُقِفُواْ عَلَى النَّارِ فَقَالُواْ يَا لَيْتَنَا نُرَدُّ وَلاَ نُكَذِّبَ بِآيَاتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ (27).[2]

ترجمة :او که ووينې ته (اې محمده ﷺ!) کله چې ودرولی شي دوی پر اور (د دوزخ د پل صراط په سر نو وبه وينې يو لوی امر) نو وبه وايي دوی (د عذاب د انواعو د ليدلو وروسته) اې کاشکي مونږ بيا بوتلی شو (دنيا ته) او نه به کړو تکذيب په آيتونو د رب خپل او شو به مونږ له مؤمنانو (باور کوونکيو نه).

## کفار به همېشه په دوزخ کې وي

الله فرمايي : إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُواْ عَنْهَا لاَ تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاء وَلاَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ (40) لَهُم مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِن فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ (41) .[3]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې نسبت د دروغو کوي آيتونو زمونږ ته او تکبر کوي (له قبول) د هغو

[1] سورة النساء
[2] سورة الانعام
[3] سورة الاعراف

وبه نه پرانیستلی شي دوی ته ورونه د آسمان (چې پورته یوړل شي نیک عملونه او ارواح د دوی) او نه به داخل شي دوی جنت ته تر هغه پورې چې ننوزي اوښ په سوري د ستنې کې او هم داسې (لکه جزا د متکبرانو) جزا ورکوو مونږ مجرمانو (کافرانو) ته مقرر دی دوی ته له دوزخ څنې فرش او وي به د پاسه د دوی آغوستنې (پر دې د اور) او هم داسې (لکه جزا ددې خلقو) جزا ورکوو مونږ ظالمانو ته.

## د دوزخ اوه دروازې دي

الله فرمايي : وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ (43) لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ لِّكُلِّ بَابٍ مِّنْهُمْ جُزْءٌ مَّقْسُومٌ (44) .[1]

ترجمة : او بېشکه چې جهنم (دوزخ) خامخا ځای د وعدې د دغو (تابعانو ستا) دی د ټولو چې دي دې (دوزخ) لره اوه دروازې د پاره د هرې دروازې له دې (ګمراهانو) څخه یوه برخه به وي قسمت (او تعیین) کړل شوې.

## د دوزخ تر اور به د اور پردې تاو وي

الله فرمايي :وَقُلِ الْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ فَمَن شَاء فَلْيُؤْمِن وَمَن شَاء فَلْيَكْفُرْ إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلظَّالِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا وَإِن يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاء كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ وَسَاءتْ مُرْتَفَقًا (29).[2]

ترجمة : ووايه (اې محمده ﷺ! دوی ته اسلام قرآن) حق دی له رب ستاسې پس هرڅوک چې اراده (د ایمان) وکړي نو ایمان دې راوړي! او هرڅوک

[1] سورة الحجر
[2] سورة الكهف

چې اراده (د کفر) وکړي نو کافر د شي بېشکه چې مونږ تيار کړی مو دی لپاره د ظالمانو (کافرانو داسې) اور چې چاپېر شوی دی له دوی پردې د هغه (چې هغه پردې به هم د اور وي) او که فرياد وکړي (دوی له تندې) نو فرياد به يې واخيستی شي (په ورکولو د داسې) اوبو (سره) لکه زوې (يا د تېلو خټې) چې وريتوي به مخونه بد ځيز د څښلو دي (دغه زوې) او بد دی (دغه اور ځای د آرام يا) له وجې د انتفاع.

## دوزخيان به په ګرزونو وهل کيږي

الله فرمايي : وَلَهُم مَّقَامِعُ مِنْ حَدِيدٍ (21) كُلَّمَا أَرَادُوا أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا مِنْ غَمٍّ أُعِيدُوا فِيهَا وَذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ (22) . [1]

ترجمة : او وي به د دوی د پاره څټکونه (ګرزونه) له اوسپنې (چې د دوی سرونه به پرې ټکول او وهل کيږي) هرکله چې اراده وکړي (دوزخيان) د دې چې ووځي له دغه (دوزخ څخه) له غمه نو بېرته ګرځولی شي دوی په دغه (اور) کې او (وبه ويلی شي دوی ته) و څکئ تاسې عذاب (د اور ډېر) سوزوونکی.

---

[1] سورة الحج

# په دوزخ کې به دمرګ اسباب وي لکن مرګ به نه وي

الله فرمايي : مِّن وَرَآئِهِ جَهَنَّمُ وَيُسْقَى مِن مَّاء صَدِيدٍ (16) يَتَجَرَّعُهُ وَلاَ يَكَادُ يُسِيغُهُ وَيَأْتِيهِ الْمَوْتُ مِن كُلِّ مَكَانٍ وَمَا هُوَ بِمَيِّتٍ وَمِن وَرَآئِهِ عَذَابٌ غَلِيظٌ (17). [1]

ترجمة : چې وړاندې د ده دوزخ دی پس له مرګه او په کې سوزي او ورڅښولی به شي (پرې په زوره) له اوبو (چې زوې وينې سره ګډې وي او د دوزخيانو له ګېډو نه بهيږي) چې غړپ غړپ به يې (په تکليف سره) څښي او نه به وي نژدې چې تېرې کړي هغه (زوې په اساني سره له ډېر تريخوالي او بد بويي) او را به شي ده ته (سختي د) مرګ له هر طرف (او له هر ځايه) حال دا چې نه به وي دی مړ کېدونکی (چې په آرام شي) او له شا او په مخ د ده کې به عذاب ډېر سخت وي.

## د دوزخ اور به هر وخت ګرمول کيږي

الله فرمايي : وَمَن يَهْدِ اللّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُمْ أَوْلِيَاء مِن دُونِهِ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى وُجُوهِهِمْ عُمْيًا وَبُكْمًا وَصُمًّا مَّأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنَاهُمْ سَعِيرًا (97) . [2]

ترجمة : او هر هغه چاته چې سمه لياره و ښودله الله نو همغه د سمې لياري موندونکی دی او هرڅوک چې ئې ګمراه کړي (الله ) نو له سره به نه مومې ته دوی ته نور دوستان بې له دغه (الله چې سمه لياره ور وښيي) او را جمع به کړو (مونږ) دوی لره په ورځ د قيامت کې (نسکور تلونکی په سبب د بدو عملونو د دوی) پر مخونو خپلو چې ړانده

---

1 سورة ابراهيم
2 سورة بني اسرائيل

او ګونګیان به وي او کانه به وي (په سبب د بدو اعمالو خپلو) ځای د دوی دوزخ وي هر کله چې غلې شي (لمبې د دوزخ) زیات به کړو دوی ته تیز اور.

## په دوزخ کې به شور وي چې اواز به نه آوریدل کیږي

لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَهُمْ فِيهَا لَا يَسْمَعُونَ (100). 1

ترجمة : وي به دوی ته په دغه (دوزخ) کې چغې سورې او دوی به په دې دوزخ کې نه آوري هیڅ (شی د دوزخ د شور ماشور له سببه) .

## دوزخیان به په خپله ګمراهي اعتراف کوي

قَالُوا رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَالِّينَ (106) رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْهَا فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا ظَالِمُونَ (107) قَالَ اخْسَؤُوا فِيهَا وَلَا تُكَلِّمُونِ (108) إِنَّهُ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِي يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَأَنتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ (109) فَاتَّخَذْتُمُوهُمْ سِخْرِيًّا حَتَّى أَنسَوْكُمْ ذِكْرِي وَكُنتُم مِّنْهُمْ تَضْحَكُونَ (110). [2]

ترجمة: نو وبه وایي (کفار) اې ربه زمونږ غالبه شوې وه پر مونږ بد بختي زمونږ او وو مونږ یو قوم ګمراهان (چې لیاره د حق شیطان راخخه ورکه کړې وه) اې ربه زمونږ (یو کرت) وباسه مونږ له دې دوزخه پس که بیا را وګرځېدو مونږ (دې کفر ته) پس بېشکه مونږ ظالمان یو( پر ځانونو خپلو باندې) و به فرمایي چې تاسې چُپ شئ (پراته اوسئ خوار ذلیل) په دې دوزخ کې او مه غږیږئ له ما سره (په دفع د عذاب کې)

---

1 سورة الانبياء
2 سورة المؤمنون

بېشكه شان دا دى چې وه يوه ډله له بندګانو زما (يعني مؤمنان) چې ويل دوى (تضرعاً) اې ربه زمونږ ه پوره يقين او تصديق مو كړى دى (په ټولو مؤمن به شيانو باندې) نو مغفرت وكړه مونږ ته (ګناه زمونږ) او مهرباني را باندې وكړه او ته (اې پروردګاره) خير ډېر غوره د ټولو مهرباني كوونكيو ئې پس نيولى وو تاسې دوى مسخرې كړل شوي پر دوى تر هغه پورې چې هېر كړ (مسلمانانو) له تاسې څخه اې كفارو ذكر ياد زما (په سبب د مشغولتيا د تاسې اې كفارو په مسخرو د مسلمانانو كې او وئ تاسې چې په هغوى پورې مو خندل (هر وخت له ډېره كبره) .

# دوزخيان به ځان ته شېراګاني كوي

الله فرمايي : بَلْ كَذَّبُوا بِالسَّاعَةِ وَأَعْتَدْنَا لِمَن كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيرًا (11) إِذَا رَأَتْهُم مِّن مَّكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا (12) وَإِذَا أُلْقُوا مِنْهَا مَكَانًا ضَيِّقًا مُقَرَّنِينَ دَعَوْا هُنَالِكَ ثُبُورًا (13) لَا تَدْعُوا الْيَوْمَ ثُبُورًا وَاحِدًا وَادْعُوا ثُبُورًا كَثِيرًا (14) . [1]

ترجمة : بلكه نسبت د دروغو كوي (كفار) په قيامت باندې (چې نشته) او تيار كړى دى مونږ د پاره د هغه چا چې نسبت ددروغو كوي په قيامت باندې سخت اور (د دوزخ) كله چې ويني (دغه اور) دوى له هغه ځاى لرې نو آوري به دوى (دغه اور) لره خوټكېدل له ډېره قهره او غورېدل (له ډېره غضبه) او كله چې وغورځولى شي (كفار) له دوزخ نه په ځاى تنګ كې په دغه حال كې چې (څو تنه يو ځاى سره نږدې په ځنځيرونو) سره تړلى شوي وي نو په دغه ځاى بولي دوى هلاک (خپل) مه غواړئ مه بولئ تاسې نن ورځ هلاک يو او وبولئ تاسې هلاكونه ډېر (ځكه چې عذاب مو ډېر اقسام لري) .

---

[1] سورة الفرقان

## هرڅوک به یو ځل دوزخ ته ورځي

الله فرمايي : وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَى رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا (71) ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوا وَّنَذَرُ الظَّالِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا (72) .[1]

ترجمة : او نشته هېڅوک له تاسې مګر چې دی وارېدېدونکی ننوتونکی دی دغه ته (يعني دوزخ ته چې مؤمن پر صراط تيريږي او کافر ترې لوېږي) دی (دغه عبور على النار) په رب ستايقيني حکم پرې کړل شوی بيا به نجات ورکړو هغو کسانو ته چې پرهېزګاري ئې کړې ده او پرې به ږدو ظالمان په دوزخ کې پر ګونډو پرېوتلي.

## مجرمين به دوزخ ته لکه رمه داسې شړل کيږي

الله فرمايي : وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَى جَهَنَّمَ وِرْدًا (86) لَا يَمْلِكُونَ الشَّفَاعَةَ إِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَنِ عَهْدًا (87) وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمَنُ وَلَدًا (88) لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا إِدًّا (89).[2]

ترجمة : او شړو (په شدت سره) مجرمان (طرف د) دوزخ ته (د حيواناتو په شان) پلي (پياده) تږي نه مالکان کيږي (هېڅ يو د دوی) د شفاعت (د هېچا) مګر هغه څوک چې اخيستې ئې ده په نزد د رحمن وعده (او په شفاعت مجاز وي) او وايي (کتابيان او مشرکان) نيولی دی رحمن ولد خامخا په تحقيق راتله کړي دي تاسې په يو شي لوی سره له حيثيته د ګناه.

## دوزخ به د شيطان او د هغه د پيروانو څخه ډکيږي

1 سورة مريم
2 سورة مريم

الله فرمايي : لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنكَ وَمِمَّن تَبِعَكَ مِنْهُمْ أَجْمَعِينَ (85) . [1]

ترجمة : (الله شيطان ته فرمايل) خامخا ډک به کړم هرو مرو (خامخا) دوزخ له تانه (او ستا له اولاد نه) او له هغه چا نه چې متابعت يې کړی وي ستا له دغو (انسانانو) نه ټولو څخه.

# په دوزخيانو به د پاسه د اور طبقې وي

الله فرمايي : لَهُم مِّن فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِن تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ذَلِكَ يُخَوِّفُ اللَّهُ بِهِ عِبَادَهُ يَا عِبَادِ فَاتَّقُونِ (16). [2]

ترجمة : وي به دوی ته د پاسه د دوی طبقات له اوره او د لاندې د دوی طبقات (د اور) دغه (مذکور عذاب) ويروي الله په هغه سره بندګان (مؤمنان خپل) اې بندګانو زما پس وويرېږئ له ما (په اجتناب د معاصيو) .

---

1 سورة ص

2 سورة الزمر

# دو زخيان به ډلې ډلې دوزخ ته بېول كيږي

الله فرمايي : وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَى جَهَنَّمَ زُمَرًا حَتَّى إِذَا جَاؤُوهَا فُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَتْلُونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِ رَبِّكُمْ وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَاء يَوْمِكُمْ هَذَا قَالُوا بَلَى وَلَكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ عَلَى الْكَافِرِينَ (71) قِيلَ ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ (72) .[1]

ترجمة : او شړل را شكل كيږي (په شدت سره) هغه كسان چې كافران شوي دي طرف د دوزخ ته ډلې ډلې تر هغه پورې چې راشي دوى دوزخ ته حال دا چې وبه پرانيستلى شي دروازې د دغه (دوزخ) وبه وايي دوى ته خزانچيان (متصرفان) د دغه (دوزخ) آيا نه ؤ راغلى تاسې ته رسولان له تاسې نه چې لوستل به دغو (رسولانو د تاسې) پر تاسې آيتونه (د قرآن) د رب ستاسې او ويرول به دوى تاسې له ملاقات د هغې ورځې ستاسې چې دغه ده وبه وايي (كفار چې ولې نه وو راغلى) بلكه راغلى وو وليكن ثابته شوېده كلمه (حكم) د عذاب پر كافرانو و به ويل شي دوى ته ننوزئ دروازو د دوزخ ته په دې حال كې چې همېشه اوسيدونكي اوسئ په ده كې پس بد دى ځاى د هستوګنې د متكبرانو (دا دوزخ) .

# دوزخيان به په دوزخ كې مرګ غواړي

الله فرمايي : إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي عَذَابِ جَهَنَّمَ خَالِدُونَ (74) لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ وَهُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ (75) وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ وَلَكِن كَانُوا هُمُ الظَّالِمِينَ (76) وَنَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ قَالَ إِنَّكُم مَّاكِثُونَ (77) لَقَدْ جِئْنَاكُم بِالْحَقِّ وَلَكِنَّ أَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كَارِهُونَ (78) .[2]

---

[1] سورة الزمر
[2] سورة الزخرف

ترجمة : بېشکه چې مجرمان (کافران) په عذاب د دوزخ کې به همېشه پاتې کېدونکي وي نه به سپکاوه شي له دوی څخه (عذاب) او دوی به په دغه عذاب کې ساکت نا امیده وي (له نجات او نشاطه) او نه دی کړی مونږ ظلم پر دوی ولیکن دوی وو هم دوی ظالمان (پر ځانونو خپلو په کفر سره) او غږ به وکړي (دوزخیان) چې اې مالکه (خازنه د دوزخ) حکم دې وکړي پر مونږ رب ستا (د مرګ) وبه وایي (ملک خازن پس له زرو کلوپه ځواب د دوی) چې بېشکه (ژوندي) پاتې کېدونکي يئ (په دوزخ کې) خامخا په تحقیق راغلي وو مونږ تاسې ته (په وسیله د انبیاؤ ) په حق سره و لیکن زیاتره ستاسې حق لره بد ګڼونکي يئ (چې حق به مو نه قبلاوه) .

# د دوزخ په اړه مختلف قرآني آیتونه

يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّن نَّارٍ وَنُحَاسٌ فَلَا تَنتَصِرَانِ (35) . [1]

ترجمة : وبه لیږل شي په تاسې باندې خالصې لمبې له اوره او په لوګي (سره ګډ یا خالي له اوره) بیا به تاسې مدد نشئ کولی یو له بل سره په دفع د عذاب کې.

[1] سورة رحمن

يَطُوفُونَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ آنٍ (44). [1]

ترجمة : ګرځي به دوی په مینځ د دوزخ او په مینځ د اوبو ډېرو تودو ډېرو ګرمو کې.

وَأَصْحَابُ الشِّمَالِ مَا أَصْحَابُ الشِّمَالِ (41) فِي سَمُومٍ وَحَمِيمٍ (42) وَظِلٍّ مِّن يَحْمُومٍ (43) لَّا بَارِدٍ وَلَا كَرِيمٍ (44) إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ مُتْرَفِينَ (45) وَكَانُوا يُصِرُّونَ عَلَى الْحِنثِ الْعَظِيمِ (46) وَكَانُوا يَقُولُونَ أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَئِنَّا لَمَبْعُوثُونَ (47) . [2]

ترجمة : او ملګری یاران د کینڼ لاس څومره بد دي ملګری یاران د کینڼ لاس په اور تاوده کې به وي او په سوځوونکیو اوبو کې به وی او په سیوري کې به وي د لوګي ډېر تور چې نه به بیخي سوړ او نه به د عزت او راحت وي (دا عذابونه په سبب د دې وو چې) بېشکه دوی وو پخوا له دې څخه په دنیا کې ودان کړل شوي په نعمتونو کې خوشحال او وو دوی چې دوام اصرار ضد به یې کاوه پر ګناه لویه (کفر) باندې او وو دوی چې ویل به یې آیا کله چې مړه شو مونږ او شو خاورې او هډوکي آیا بېشکه مونږ به بیا خامخا را پورته کړل شو (بلکه نه کیږو!) .

ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ (51) لَآكِلُونَ مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ (52) فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ (53) فَشَارِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيمِ (54) فَشَارِبُونَ شُرْبَ الْهِيمِ (55) . [3]

ترجمة : بیا به بېشکه تاسې ای ګمراهانو دروغ ویونکیو خامخا خوړونکی به یئ (په دوزخ کې) له ونې د زقوم څخه پس ډک کوونکي به یئ له هغې (ونې) څخه دګیډو خپلو لره . پس څښونکي به یئ تاسې په هغه (زقوم خوړلي شوي) باندې له اوبو

[1] سورة رحمن
[2] سورة الواقعة
[3] سورة الواقعة

سوځوونکیو څخه پس څښونکی به یئ (په شان) د څښلو د اوښانو ډیرو تږو .

خُذُوهُ فَغُلُّوهُ (30) ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ (31) ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ (32) إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ الْعَظِيمِ (33) وَلَا يَحُضُّ عَلَى طَعَامِ الْمِسْكِينِ (34) فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هَاهُنَا حَمِيمٌ (35) وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ (36) لَا يَأْكُلُهُ إِلَّا الْخَاطِؤُونَ (37) . [1]

ترجمة : و نیسئ دی! پس په ځنځیر سره وتړئ دی! بیا (اورد) د دوزخ ته وغورځوئ دی! بیا په ځنځیر کې چې ګزونه د هغه اویا ګزه وي پس ننه باسئ دی (په دوزخ کې) بېشکه دی وو (په دنیا) چې ایمان ئې نه راووړو په الله لوی باندې او تاکید تیز والی ئې نه کاوه په طعام ورکولو د مسکینانو محتاجانو باندې نو نشته ده ته نن ورځ په دې ځای کې کوم دوست (دافع د عذاب) او نشته هېڅ طعام (چې وئې خوري) مګر خو (د دوزخیانو د زخمونو) له وینو او زوو څخې چې نه خوري دغه (غسلین) مګر همغه خطاکاران ګناهکاران (ئې خوري)

إِنَّ لَدَيْنَا أَنكَالًا وَجَحِيمًا (12) وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَعَذَابًا أَلِيمًا (13) . [2]

ترجمة : بېشکه په نزد زمونږ دي (لپاره د منکرانو په آخرت کې) ځنځیرونه درانه او سوزوونکي او طعام نښتونکی په مرئ کې (چې د زقوم او ضریع ونه ده) او عذاب دردناک.

سَأُصْلِيهِ سَقَرَ (26) وَمَا أَدْرَاكَ مَا سَقَرُ (27) لَا تُبْقِي وَلَا تَذَرُ (28) لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ (29) عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ (30) وَمَا جَعَلْنَا أَصْحَابَ النَّارِ إِلَّا مَلَائِكَةً وَمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ إِلَّا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَيَزْدَادَ الَّذِينَ آمَنُوا إِيمَانًا وَلَا يَرْتَابَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْمُؤْمِنُونَ وَلِيَقُولَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ

---

1 **سورة الحاقة**

2 **سورة المزمل**

وَالْكَافِرُونَ مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهَذَا مَثَلًا كَذَلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ مَن يَشَاء وَيَهْدِي مَن يَشَاء وَمَا يَعْلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ إِلَّا هُوَ وَمَا هِيَ إِلَّا ذِكْرَى لِلْبَشَرِ (31) [1]

ترجمة : (نو فرمائي الله ) ژر به داخل كړم دى سقر (اور د دوزخ) ته او څه شي پوه كړى ئې ته چې څه دى اور د سقر چې نه پاتې كيږي (تر هيڅ شي د غوښو بې له سوزولو او نه پريږدي (هډوكي بې له سوزولو نه) سوزوونكي توروونكي دي (دغه اور بشره د كافرو) سړيو لره په هغه (اور د سقر) باندې مؤكلې دي نولس (۱۹) پرښتې او نه دي ګرځولې مونږ خازنانې مؤكلانې د دوزخ مګر پرښتې (ډېرې قوتناكې) او نه دى ګرځولى مونږ (دا لږ) شمېر د دوى مګر فتنه ازموينه د پاره د هغو كسانو چې كافران شوي دي (چې استهزاء او ټوكې پرې كوي چې دا څه عدد دى چې مقرر شوى دى) تر څو چې يقين وكړي هغه كسان چې دوى ته وركړل شوى دى كتاب (چې يهود او نصارادي ځكه چې د دوى په كتابونو كې د خازنانو د اور هم دغه عدد وو) او (بل لپاره ددې چې) زيات كړي هغه كسان چې ايمان ئې راوړى دى په محمدﷺ له اهل كتابو نه له جهته د ايمان ايمان ئې زيات كړي (او لپاره ددې) چې ونه كړي شک هغه كسان چې دوى ته وركړل شوى دى كتاب او (غير له مذكورينو نه نور) مؤمنان او چې ووايي هغه كسان چې په زړونو د هغوى كې مرض ناروغي (د نفاق) ده او (ووايي) كافران د څه شى اراده كړې ده الله پر دې شمېره (د ملائكو) سره له جهته د مثاله هم داسې (په شان د ګمراه كولو د منكرانو ) ګمراه كوي الله هر هغه څوک چې اراده وفرمايي د ضلالت ئې او سمه لاره ښيي هر هغه چا ته چې اراده وفرمائي (د هدايت ئې) او نه پوهيږي په لښكرو د رب ستا مګر هم دغه (الله پرې پوهيږي او ورته معلوم دي) .

[1] سورة المدثر

إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ سَلَاسِلَا وَأَغْلَالًا وَسَعِيرًا (4). [1]

ترجمة : بېشكه مونږ تيار كړي مو دي كافرانو ته ځنځيرونه او طوقونه او تود اور (لمبې وهونكى چې تل به پكې سوزي)

فَإِذَا جَاءتِ الطَّامَّةُ الْكُبْرَى (34) يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ مَا سَعَى (35) وَبُرِّزَتِ الْجَحِيمُ لِمَن يَرَى (36) فَأَمَّا مَن طَغَى (37) وَآثَرَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا (38) فَإِنَّ الْجَحِيمَ هِيَ الْمَأْوَى (39) . [2]

ترجمة : پس كله چې راشي آفت بلاء لويه (قيامت يا وقت د ورتګ د كفارو جحيم ته او د مؤمنانو نعيم ته) په هغه ورځ به ياد كړي انسان هغه څه چې كړې ئې وي (كه خير وي يا شر په دنيا كې) او څرګند (ښكاره) به كړل شي دوزخ هر هغه چا ته چې ويني ئې (د ليدلو خاوند وي) پس هغه هر هغه چې سركشي يې كړې وي (په كفر سره) او غوره كړى ئې وي ژوندون لږ خسيس (پر آخرت باندې) پس بېشكه دوزخ هم دا (دوزخ دده) د اوسېدلو ځاى دى .

فَأَنذَرْتُكُمْ نَارًا تَلَظَّى (14) . [3]

ترجمة : نو ووېرولئ ما تاسې (اې منكرانو) له اوره چې لمبې به وهي.

وَإِذَا الْجَحِيمُ سُعِّرَتْ (12) وَإِذَا الْجَنَّةُ أُزْلِفَتْ (13) عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا أَحْضَرَتْ (14). [4]

ترجمة : او كله چې دوزخ بلې لمبې كړل شي (كافرانو ته) او كله چې جنت نژدې كړل شي

---

[1] سورة الدهر(الانسان)
[2] سورة النازعات
[3] سورة الليل
[4] سورة التكوير

(مؤمنانو ته) پوه به شي هر نفس په هغه شي چې حاضر کړي ئې وي (له خير او شره) .

# د دوزخ په اړه ځینې احادیث

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : ناركم جزء من سبعين جزءاً من نار جهنم" قيل يا رسول الله إن كانت لكافية، قال:" فضلت عليهن بتسعة وستين جزءاً كلهن مثل حرها . [1]

ترجمة : ستاسې (په دنیا کې) دا اور د دوزخ د اور نه اویایمه برخه ده چا ورته وویل (د عذاب ورکولو لپاره) همدا د دنیا اور هم بس وو. رسول الله ﷺ وفرمایل هغه د دوزخ اور لدې اور نه په ٦٩ درجو سره زیات شوی دی چې هره درجه یې دومره حرارت لري لکه دا اور .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : أوقدت النار ألف سنة فابيضت ثم أوقدت ألف سنة فاحمرت ثم أوقدت ألف سنة فاسودت فهي سوداء كالليل المظلم. [2]

ترجمة : د دوزخ اور زر کاله بل کړل شو تردې چې سپین شو بیا زر کاله بل کړل شوي تردې چې سور شو او بیا زر کاله بل کړل شو تردې چې تور شو اوس هغه تک تور دی لکه تیاره شپه .

حضرت عبد الله بن مسعود فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : يؤتى بجهنم يومئذ لها سبعون ألف زمام مع كل زمام سبعون ألف ملك يجرونها . [3]

ترجمة : دوزخ به د قیامت په ورځ را وړل شي اویا زره واړې به یې وي له هرې واړې سره به اویا زره ملائک وي چې دا به را کش کوي .

---

1 صحيح البخاري
2 سنن ابن ماجة
3 صحيح مسلم

حضرت عتبة بن غزوان فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إن الصخرة العظيمة لتلقى من شفير جهنم فتهوي فيها سبعين عاما وما تفضي إلى قرارها .** [1]

ترجمة : بېشکه يوه تيږه به د دوزخ د غاړې نه ور غورځوله کيږي ترڅو چې هغه د دوزخ بيخ ته رسيږي اويا کاله به ورباندې تيريږي .

حضرت عدي بن حاتم فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **ما منكم من أحد إلا وسيكلمه الله يوم القيامة، ليس بين الله وبينه ترجمان، ثم ينظر فلا يرى شيئاً قُدَّامَهُ، ثم ينظر بين يديه فتستقبله النار، فمن استطاع منكم أن يتقي النار ولو بشق تمرة.**

ترجمة : پتاسې کې به هېڅوک هم داسې پاتې نشي مګر الله به د قيامت په ورځ ورسره خبرې وکوې پداسې توګه چې دده او د الله په مينځ کې به هېڅ ډول ترجمان نه وي بيا به وړاندې وګوري هېڅ شی به ورته ښکاره نه شي بيا به خپلې مخې ته وګوري نو اور به ورسره مخامخ شي چې اوس پتاسې کې د چا داوس وو چې د اور نه په يوه خورما باندې ځان وساتي نو ود ساتي (يعني چې څوک يوه خورما د الله د رضا لپاره ددې لپاره ورکولی شي چې د اور نه پرې خلاص شي نو ور د کړي) .

---

[1] **سنن الترمذي**

# دوزخ اوس هم موجود دی

د رسول الله ﷺ ټول صحابه کرام ، تابعين او اهل السنة و الجماعة او د اسلام علماء او فقهاء ، اهل التصوف او ټولې ديني ډلې پدې متفق دي چې دوزخ اوس هم موجود دی او پدې اړه باندې قرآني دلائل د رسول اللهﷺ احاديث او د رسول الله ﷺ نه وړاندې د تېرو شويو پيغمبرانو له اول نه تر آخره پورې اخبار پدې باندې د دلائلو په ډول وړاندې کوي لکه چې پخوانيو ټولو انبياوو خپل امتيان له دوزخ څخه وېرولي دي او د دوزخ په اړه يې هغوی ته خبرې کړې دي په يو وخت کې داسې خلک پيدا شول چې هغوی دې ټولو دلائلو ته شا کړه او خپل عقل يې مخې ته کېښود او ويې ويل چې اوس خو هلته څوک نه ورځي نو تر قيامت وړاندې يې پيدا کول عبث دي بلکه د قيامت په ورځ به يې الله پيدا کړي دا يو داسې دليل دی چې د هغه دلائلو سره يې په مقايسه کړې چې هغه دا ثابتوي چې هغه اوس هم موجود دی نو دا دلائل هېڅ شی هم نه دي ددې وجې نه سلف الصالح علماء او هغه چې د دوی په لاره روان دي هغوی د عقائدو په کتابونو کې پدې خبره د ټينګار ضرورت محسوس کوي چې جنت او دوزخ همدا اوس موجود او مخلوق دي او پدې باندې پرې کړي او غوڅ دلائل موجود دي د مثال په ډول الله فرمايي :

فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ وَالحِجَارَةُ أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ .[1]

ترجمة : پس وساتئ تاسې (ځانونه) له هغه اوره چې خس (خاشاک) د هغه بنيادمان او تيږې دي چې تيار کړل شوی دی لپاره د کافرانو.

[1] سورة البقرة آية ٢٤

إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلظَّالِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا . [1]

ترجمة : بېشكه چې مونږ تيار كړى مو دى لپاره د ظالمانو (كافرانو داسې) اور چې چاپېر شوى دى له دوى پردې د هغه (چې هغه پردې به هم د اور وي) .

إِنَّا أَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ نُزُلًا . [2]

ترجمة : بېشكه مونږ تيار كړى مو دى جهنم (دوزخ) د پاره د كافرانو پړاو (يا مېلمستيا) .

بَلْ كَذَّبُوا بِالسَّاعَةِ وَأَعْتَدْنَا لِمَنْ كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيرًا . [3]

ترجمة : بلكه نسبت د دروغو كوي (كفار) په قيامت باندې (چې نشته) او تيار كړى دى مونږ د پاره د هغه چا چې نسبت ددروغو كوي په قيامت باندې سخت اور (د دوزخ)

مِمَّا خَطِيئَاتِهِمْ أُغْرِقُوا فَأُدْخِلُوا نَارًا فَلَمْ يَجِدُوا لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ أَنصَارًا (25) . [4]

ترجمة : په سبب د ګناهونو خپلو سره ډوب كړل شول (په دنيا كې په ډېرو دريابي اوبو كې) نو داخل به كړل شي (اخروي) اور ته بيا نه موندل دوى د خپلو ځانونو لپاره پرته له الله مددګاران (چې له عذابه څخه يې خلاص كړي) .

وَيُعَذِّبَ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْمُشْرِكِينَ وَالْمُشْرِكَاتِ الظَّانِّينَ بِاللَّهِ ظَنَّ السَّوْءِ عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ وَسَاءتْ مَصِيرًا (6) . [1]

---

1 **سورة الكهف آية ٢٩**
2 **سورة الكهف آية ١٠٢**
3 **سورة الفرقان آية ١١**
4 **سورة نوح**

ترجمة : چې په عذاب کړي (الله) منافقان سړي او منافقانې ښځې او مشرکان سړي او مشرکانې ښځې چې ګمان کوونکي دي پر الله باندې ګمان د بدی (چې الله به هېڅ کله رسول اللهﷺ ته بری نه ورکوي) پر دوی باندې دي را ګرځېدل د بدئ (په ذلت او عذاب) سره او غضب کړی دی الله پر دوی باندې او لرې کړي دي (الله دوی له رحمت خپله) او تیار کړی دی الله دوی ته (عذاب د) دوزخ او بد ځای د ورتللو دی( دغه دوزخ).

وَأَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابَ السَّعِيرِ . [2]

ترجمة : او تیار کړی مو دی د دوی لپاره عذاب (د دوزخ) ګرم.

النَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا . [3]

ترجمة: اور (د دوزخ) وړاندې کاوه شي (دا کفار) پر دې (اور) هر صبا او هر بیګا.

حضرت ابن عمر فرمايي رسول الله ﷺ فرمایل : **إن أحدكم إذا مات عرض عليه مقعده بالغداة والعشي، إن كان من أهل الجنة فمن أهل الجنة، وإن كان من أهل النار فمن أهل النار، يقال هذا مقعدك حتى يبعثك الله إليه يوم القيامة.** [4]

ترجمة : بېشکه یو ستاسې چې کله مړ شي ده ته دده ځای په سحر او ماسختن کې ورښکاره کول کیږي که جنتي وي نو جنتي او که دزوخي وي نو دوزخي ورته ویل کیږي دا ستا هستوګنځی دی چې کله د د قیامت په ورځ الله را پاڅوي .

---

1 **سورة الفتح**
2 **سورة الملک آية ٥**
3 **سورة غافر (المؤمن) آية ٤٦**
4 **صحيح البخاري و مسلم**

همدارنګه په صحيح البخاري او صحيح مسلم کې بل حديث دی چې : **رأى في صلاة الكسوف النار فلم ير منظر أفظع من ذلك** (رسول الله ﷺ په صلاة الکسوف کې اور وليدو او د هغه نه يې بد منظر کله هم نه وو ليدلی) .

حضرت عمران بن حصين فرمايي رسول الله ﷺ فرمايي :

**اطلعت في النار فرأيت أكثر أهلها النساء .** [1]

ترجمة : ما په اور کې ور وکتل ومې ليدل چې اکثر اهل يې ښځې وې .

حضرت ابو زر فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :

**أبردوا بالصلاة فإن شدة الحر من فيح جهنم .** [2]

ترجمة : د ماسپښين مونځ يخوئ (لږ وروسته يې کوئ) ځکه د ګرمي سختوالی د دوزخ له آسويلي څخه دی .

د حضرت ابي هريره څخه روايت دی رسول الله ﷺ فرمايل : **اشتكت النار إلى ربها فقالت: رب أكل بعضي بعضاً، فأذن لها بنفسين: نفس في الشتاء، ونفس في الصيف، فأشد ما تجدون من الحر، وأشد ما تجدون من الزمهرير .** [3]

ترجمة : اور خپل رب ته شکايت وکولو ويې ويل : بعض زما بعض وخوړلو ماته اجازه راکړه چې دوه ځله تنفس وکوم يو په ژمي کې او بل په اوړي کې نو تاسې چې په ګرمي کې دا سخته ګرمي وينئ دا

---

1 **صحيح البخاري**
2 **صحيح البخاري**
3 **صحيح البخاري**

د ګرم دوزخ دی او په ژمي کې چې سخت یخ وینځ دا د زمهریر څخه دی .

حضرت انس فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **لو رأیتم ما رأیت لضحکتم قلیلاً ولبکیتم کثیراً قالوا: وما رأیت یا رسول الله؟ قال رأیت الجنة والنار** . [1]

ترجمة : که چېرته هغه څه چې ما لیدلي دي تاسې لیدلي وای نو لږ به مو خندل او ډېر به مو ژړل صحابه وو ورڅخه پوښتنه وکوله : او تا څه لیدلي دي یا رسول الله ﷺ؟ رسول الله ﷺ ورته وویل : ما جنت او دوزخ لیدلي دي .

او ددېنه بغیر نور هم ډېر روایات موجود دي چې هغه دا ثابتوي چې جنت او دوزخ اوس موجود دي او پیدا کړل شوي دي .

[1] **صحیح مسلم**

# دوزخ چېرته دی؟

حضرت عبد الله بن عباس د دوزخ د ځای په اړه فرمايي **جهنم في الأرض السابعة** (دوزخ په اومه زمکه کې دی)[1] .

حضرت مجاهد فرمايي : ما له حضرت ابن عباس څخه پوښتنه وکوله چې دوزخ چېرته دی؟ هغه راته وویل تر اوو سر په بحرونو لاندې .

حضرت خزيمة د حضرت عبد الله بن سلام څخه روايت کړی دی چې هغه به فرمايل **إن الجنة في السماء، وإن النار في الأرض** (بېشکه جنت په اسمان کې دی او دوزخ په زمکه کې دی) .

د دې سلسلې په هغه کتاب کې چې د ځانکدن په اړه وو يو حديث په تفصيل سره تېر شوی دی چې په هغه کې له مسلم او کافر نه د روح وتلو د څرنګوالي په اړه بحث شوی وو په هغه کې راغلي وو چې کله د کافر نه روح واخيستل شي هغه ملائکې په يوه دوزخي توره بد بويه ټوټه کې ونغاړي هغه چې اسمان ته وړي نو د اسمان دروازې به ورته نه خلاصيږي او هغه ښکتنۍ زمکې ته را وغورځول شي يعني د هغوی ځای به سجين وي چې تر اوو زمکو لاندې دی او د مسلمانانو ارواح به پورته عليين ته خيږي نو معنی دا چې د مسلمانانو ځای پورته په اسمانونو کې دی او د کفارو ځای ښکته په اومه زمکه کې دی .

ځينې علماء فرمايي دوزخ او جنت دواړه په اسمانونو کې دي او دوی هغه روايت دليل نيسي چې حضرت حذيفة فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **أتيت بالبراق ، و هو دابة أبيض طويل يضع حافره عند منتهى طرفة ، فلم**

---

[1] رواه ابو نعيم

نزايل ظهره أنا و جبريل حتى أتيت بيت المقدس ، ففتحت لنا أبواب السماء و رأيت الجنة و النار .[1]

ترجمة : زه په براق باندې راغلم هغه يو سپين اوږد حيوان دى خپل قدم په هغه ځاى کې ايږدي چېرته يې چې نظر رسيږي مونږ د هغه په شا باندې وو زه او جبريل تردې چې بيت المقدس ته راغلو د اسمان دروازې زما لپاره خلاصې شوې ما هلته جنت او دوزخ وليدل .

همدارنګه په بل حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي : **رأيت ليلة أسري بي الجنة والنار في السماء فقرأت هذه الآية: وَفِي السَّمَاء رِزْقُكُمْ وَمَا تُوعَدُونَ[2] فكأني لم أقرأها قط .**

ترجمة : ما د معراج په شپه جنت او دوزخ وليدل په اسمان کې نو دا آيت مې تلاوت کړو چې الله فرمايي په اسمان کې ستاسې روزي ده او هغه څه دي چې لتاسې سره يې وعده کيږي ماته داسې ښکاره شوه لکه دا آيت چې ما مخکې بالکل ليدلى نه وي .

خو هغه علماء چې فرمايي دوزخ په اومه زمکه کې دى هغوى فرمايي ددې احاديثو نه دا نه ثابتيږي چې دوزخ د په اسمان کې وي ځکه کېداى شي په زمکه کې دې وي او رسول الله ﷺ د پداسې حالت کې ليدلى وي چې هغه په اسمان کې وو لکه يو کس چې په قبر کې کېښودل شي هغه په قبر کې د ننه وي او هغه دوزخ او جنت دواړه ويني سره ددې چې جنت په زمکه کې نه دى همدارنګه په يو بل روايت کې راغلي دي چې پداسې حال کې چې رسول الله ﷺ د کسوف په مانځه کې وو هغه يې وليدل او د

---

[1] **امام احمد**

[2] **الذاريات: 22**

هغه پورتنيو حديثونو معنى داده چې پداسې حالت کې مې وليدل چې زه په اسمان کې وم .

شيخ ولى الله الدهلوي فرمايي **ولم يصرح نص بتعيين مكانهما بل حيث شاء الله تعالى إذ لا إحاطة لنا بخلق الله وعوالمه .**

ترجمة : پدې باندې صريح څه دليل نشته چې د جنت او دوزخ ځاى ښکاره کړي بلکه چېرته چې د الله خوښه وي هلته به وي او د الله په ټول خلق باندې زمونږ احاطه او علم نشته .

علماء کرام فرمايي چې همدا غوره قول دى .

## د دوزخ ژور والى

دوزخ يوه کنده ده چې ډېره زياته ژوره ده او هلته چې يو ځل څوک ور وغورځول شي بيا يې هېڅ لوري ته د وتلو څه لاره او لورى نشته د هغه د ژور والي په اړه يو حديث مخکې هم تېر شو حضرت ابو هريره فرمايي مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چې يو نا څاپي اواز مو واورېدو رسول الله ﷺ وفرمايل : **هَذَا حَجَرٌ أُرْسِلَ فِي جَهَنَّمَ مُنْذُ سَبْعِينَ عَامًا ، الآنَ حِينَ انْتَهَى إِلَى قَعْرِهَا .** [1]

ترجمة : دا يو کانړى وو په دوزخ کې له اويا کالو څخه غورځول شوى وو اوس يې بيخ ته ورسېدو (نو دا اواز يې وکولو)

حضرت خالد بن عمير فرمايي حضرت عتبة بن غزوان خلکو ته خطبه ويله او وعظ يې کاوه

---

[1] **البعث و النشور للبيهقي**

فـرمـايـل يـې : إنه ذكر لنا إن الحجر يلقى من شفير جهنم، فيهوي فيها سعبين عاماً، ولا يدرك لها قعراً، والله لتملأن أفعجبتم؟.[1]

تـرجمة : بـېشكـه رسول الله ﷺ مـونـږ تـه ويـل بـېشكـه يـو كـانړـی د دوزخ لـه غاړې نـه پـه دوزخ كـې ور غورځول كيږي اويـا كـالـه هغـه روان وي او هغـه بـېخ تـه پـكـې نـه رسيږي او همدا دوزخ بـه والله ډكـيږي تـاسـې حيـران شوئ؟

حضرت ابـو مـوسى الاشعـري فـرمـايـي رسول الله ﷺ فـرمـايـل لو أن حجراً قذف به في نار جهنم لهوى فيها سبعين خريفاً قبل أن يبلغ قعرها.[2]

تـرجمة : كـه چېرتـه يـو كـانړـی پـه دوزخ كـې وغورځول شي پـه هغـه بـه اويـا كـالـه تېر شي چې هغـه يـې بـيخ تـه رسيږي .

پـه يـو حديث كـې رسول الله ﷺ فـرمـايـي : ما من حكم يحكم بين الناس إلا حبس يوم القيامة وملك آخذ بقفاه حتى يقفه على شفير جهنم، ثم يرفع رأسه إلى الله عز وجل فإذا قال: ألقه، ألقاه في مهوي أربعين خريفاً.[3]

تـرجمة : هر هغـه كس چې د خلكو پـه مـينځ كـې حكم او فـيصلـه كـوي هغـه بـه د قـيامـت پـه ورځ يـوه ملائـكـه را ونـيسي اوهغـه بـه يـې تـر څټ نـيولـی وي تـردې چې د دوزخ غاړې تـه يـې را ورسوي بـيا بـه ملـكـه الله تـه سر پـورتـه كړي كـه الله ورتـه وويـل : پـكـې ور ويـې غورځوه نـو پـداسې ځای كـې بـه يـې ور وغورځوي چې څلـوېښت كـالـه بـه هغـه پـه هوا كـې وي .

---

1 صحيح مسلم
2 رواه ابن حبان
3 رواه الامام احمد

حضرت ابو ذر حضرت عمر ته فرمایل ما له رسول الله ﷺ څخه آورېدلي دي چې هغه فرمایل د قیامت په ورځ به والي یعني هغه کس چې د مسلمانانو حاکم وي را به وستل شي د دوزخ په پله به ودرول شي هغه پل به ورسره داسې وخوځیږي چې ټول بندونه به یې له خپل ځای نه وښوریږي که چېرته دا حاکم د الله اطاعت کونکی وو نو تېر به شي او که نا فرمان وو نو پل به ورته مات شي او دی به د دوزخ په کنده کې ور پرېښودل شي چې پنځوس کاله به ښکته پکې روان وي حضرت عمر ورته وویل : ددېنه وروسته به څوک دېته زړه ښه کړي چې د مسلمانانو والي او حاکم شي؟ حضرت ابو ذر ورته وویل : هغه چې خوار وي او مخ یې له خاورې سره لګېدلی وي یعني هغه کس چې قسمت یې خراب وي لدې وروسته حضرت ابو الدرداء راغلو حضرت عمر ورته وویل : اې ابا الدرداء آیا تا د رسول الله ﷺ نه دا حدیث آورېدلی دی چې کوم ماته اوس حضرت ابو ذر وویلو؟ هغه ورته همداسې خبره وکوله او دا یې ورسره زیات کړل چې پنځوس کاله به په هوا کې هغه روان وي او یا داسې څه نورې خبرې یې ورسره زیاتې کړې .[1]

رسول الله ﷺ په یو حدیث کې فرمایي : **إن الرجل ليتكلم بالكلمة لا يرى بها بأساً يهوي بها في النار سبعين خريفاً** .[2]

ترجمة : بېشکه یو کس یوه خبره کوي او دی فکر کوي چې دا خبره کول څه پروا نه لري لکن دی به پدې خبره باندې د دوزخ په داسې کنده کې اچول کیږي چې په هغې کې به څلویښت کاله روان وي .

1 التخويف للحافظ
2 **سنن الترمذي**

# د دوزخ خاشاک

د دوزخ اور به په څه شي سره ګرمیږي ؟ هلته به څه شی سوزي؟ یعني خاشاک به یې څه شی وي؟ قرآن کریم مونږ ته ویلي دي چې د دوزخ خاشاک به کافران انسانان او کاڼي وي الله فرمایي :

فَاتَّقُواْ النَّارَ الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ (24) .[1]

ترجمة : پس وساتئ تاسې (ځانونه) له هغه اوره چې خس (خاشاک) د هغه بنیادمان او تیږې دي دا اور تیار کړل شوی دی لپاره د کافرانو.

په بل ځای کې الله فرمایي : يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ (6).[2]

ترجمة: اې هغو کسانو چې ایمان ئې راوړی دی (یعني اې مؤمنانو) وساتئ تاسې ځانونه خپل او کور کهول خپل (په اطاعت د الله ) له اور څخه چې خس اور لګوني د هغه سړي او تیږې دي په دې اور باندې مقررې دي پرښتې کلکو زړونو واله قوتناکې نه کوي نافرماني دغه (فرښتې) له الله د هغه څه چې امر ئې کړی دی دوی ته او کوي دوی هغه کار چې پرې ماموري وي (د الله له لوري) .

هغه خلک چې د اور لپاره خاشاک کیږي دا به کفار او مشرکین وي او کاڼی به څه ډول کاڼی وي ددې په حقیقت الله خبر دی خو ځینې علماء فرمایي چې دا به کبریت کاڼی وي حضرت عبد الله ابن مسعود هم ویلي دي چې دا کاڼی د کبریت کاڼی دی په هغه ورځ چې الله زمکې او اسمانانو پیدا

1 سورة البقرة
2 سورة التحريم

کړي دي دا کانۍ يې هم پيدا کړی دی او د کافرانو د سوزولو لپاره يې تيار ايښی دی .[1]

او علماوو يې وجه هم ويلې ده چې ولې دا ډول کانۍ خاص کړل شوی دی پدې کې پنځه داسې نکتې دي چې په بل کاڼي کې نيشته لکه زر بلېدل ، بد بوی ، ډېر لوګی ، په بدن پسې کلک سريښ کېدل ، کله چې ګرمه شي ډېره ګرمي لري خو لکه پدې کتاب او ددې نه په وړاندې کتاب کې مونږ بيا بيا تاسې ته در په زړه کوو چې په آخرت کې کوم نعمتونه دي او يا عذابونه دي او يا د عذاب اسباب دي هغه صرف په نوم کې د دنيا له شيانو سره شريک دي حقيقت به د هغوی ډېر بدل وي.

بل هغه څه چې په دوزخ کې به اور وربانډې بلول کيږي هغه معبودان دي چې په دنيا کې يې عبادت کېدو د هغوی نه به هم د خاشاکو کار اخيستل کيږي الله فرمايي :

[1] رواه الحاكم فى المستدرک

إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ أَنتُمْ لَهَا وَارِدُونَ (98). [1]

ترجمة : بېشکه تاسې او هغه (بتان ، شيطانان) چې عبادت ئې کوئ تاسې بې له الله څخه خس (خاشاک) د دوزخ يئ تاسې (له معبودانو خپلو سره) دې دوزخ ته ننوتونکي يئ.

## دوزخ به سخت ګرم وي

لکه تر اوسه پورې چې مونږ خبرې کوو او وروسته به هم پدې اړه موضوع ګانې راشي چې ښکاره کوي چې دوزخ ډېر زيات ګرم دی الله يې د ګرمي ذکر په قرآن کريم کې هم کړی دی الله فرمايي :

فَرِحَ الْمُخَلَّفُونَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلاَفَ رَسُولِ اللّهِ وَكَرِهُواْ أَن يُجَاهِدُواْ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللّهِ وَقَالُواْ لاَ تَنفِرُواْ فِي الْحَرِّ قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرًّا لَّوْ كَانُوا يَفْقَهُونَ (81). [2]

ترجمة :خوشاله شوي وو بېرته پاتې شوي (له غزا د خپل نفاق له امله په کېناستو خپلو بېرته له رسول الله ﷺ څخه او بده ګڼله دوی دا چې جهاد وکړي په مالونو خپلو او په ځانونو خپلو په لاره د الله کې او ويل به دوی (په خپلو مينځونو کې يا مؤمنانو ته) چې مه ځئ تاسې (د تبوک غزا ته) په دغې ګرمي کې ووايه (اې محمده ﷺ! دوی ته) چې اور د دوزخ ډېر سخت دی له جهته د ګرمي (دوی ته له دې حرارته) که وي دوی چې پوهېدی (نو نافرماني به يې نه وه کړې).

د حضرت ابي هريره څخه روايت دی رسول الله ﷺ فرمايل : اشتكت النار إلى ربها فقالت: رب أكل بعضي بعضاً، فأذن لها

[1] سورة الانبياء
[2] سورة التوبة

بنفسين: نفس في الشتاء، ونفس في الصيف، فأشد ما تجدون من الحر، وأشد ما تجدون من الزمهرير. [1]

ترجمة : اور خپل رب ته شکایت وکولو ویې ویل : بعض زما بعض وخوړلو ماته اجازه راکړه چې دوه ځله تنفس وکوم یو په ژمي کې او بل په اوړي کې نو تاسې چې په ګرمي کې دا سخته ګرمي وینئ دا د ګرم دوزخ دی او په ژمي کې چې سخت یخ وینئ دا د زمهریر څخه دی .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : نارکم جزء من سبعين جزءاً من نار جهنم" قيل يا رسول الله إن كانت لكافية، قال:" فضلت عليهن بتسعة وستين جزءاً كلهن مثل حرها. [2]

ترجمة : ستاسې (په دنیا کې) دا اور د دوزخ د اور نه اویایمه برخه ده چا ورته وویل (د عذاب ورکولو لپاره) همدا د دنیا اور هم بس وو. رسول الله ﷺ وفرمایل هغه د دوزخ اور لدې اور نه په ٦٩ درجو سره زیات شوی دی چې هره درجه یې دومره حرارت لري لکه دا اور .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : أوقدت النار ألف سنة فابيضت ثم أوقدت ألف سنة فاحمرت ثم أوقدت ألف سنة فاسودت فهي سوداء كالليل المظلم. [3]

ترجمة : د دوزخ اور زر کاله بل کړل شو تردې چې سپین شو بیا زر کاله بل کړل شوي تردې چې سور شو او بیا زر کاله بل کړل شو تردې چې تور شو اوس هغه تک تور دی لکه تیاره شپه .

## د دوزخ ګرمول

---

[1] صحيح البخاري
[2] صحيح البخاري
[3] سنن ابن ماجة

د دوزخ اور کله چې وخت پرې تېر شي نو تر خپل عادي حالت نه پکې سستیا راشي نو هغه بېرته تازه کړل شي د هرې ورځې په نیمی کې تازه کیږي او بیا به د قیامت په ورځ تازه کیږي لکه الله چې فرمایي : وَإِذَا الْجَحِيمُ سُعِّرَتْ (او کله چې دوزخ ډېر ګرم کړل شي) علماء فرمایي معنی یې داد چې لږ نسبتاً قرار کړل شوی اور بېرته را تازه کړل شي او بل ځل به هغه وخت ګرمول کیږي کله چې دوزخیان هلته ورشي الله فرمایي :

وَمَن يَهْدِ اللّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُمْ أَوْلِيَاء مِن دُونِهِ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى وُجُوهِهِمْ عُمْيًا وَبُكْمًا وَصُمًّا مَّأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنَاهُمْ سَعِيرًا (97).[1]

ترجمة : او هر هغه چاته چې سمه لیاره و ښودله الله نو همغه د سمې لیارې موندونکی دی او هرڅوک چې ئې ګمراه کړي (الله ) نو له سره به نه مومې ته دوی ته نور دوستان بې له دغه (الله چې سمه لیاره ور وښیي) او را جمع به کړو (مونږ) دوی لره په ورځ د قیامت کې (نسکور تلونکی په سبب د بدو عملونو د دوی) پر مخونو خپلو چې ړانده او ګونګیان به وي او کاڼه به وي (په سبب د بدو اعمالو خپلو) ځای د دوی دوزخ وي هر کله چې غلې شي (لمبې د دوزخ) زیات به کړو دوی ته تیز اور.

## د دوزخ غصه

دوزخ به د قیامت په ورځ غصه هم ښکاره کوي او هغه به یو وېروونکی اواز هم وباسي چې هغه به ډېر زیات ډاروونکی وي الله فرمایي :

إِذَا رَأَتْهُم مِّن مَّكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا (12). [1]

---

[1] سورة الاسراء

ترجمة : کله چې ووینې (دغه اور) دوی له هغه ځای لرې نو آوري به دوی (دغه اور) لره خوټکېدل له ډېره قهره او غورېدل (له ډېره غضبه) .

## د دوزخ اور او ګرمي

په دنیا کې کله چې د انسان ګرمي وشي نو له ځانه د ګرمي د لرې کولې لپاره په عامه توګه له دریو شیانو څخه استفاده کوي اوبه ، هوا (باد) او سیوری او که په دوزخ کې دوزخیان ددې دریو شیانو لټون وکوي نو څه به په لاس ورشي؟ دا الله مونږ ته فرمایلي دي :

**وَأَصْحَابُ الشِّمَالِ مَا أَصْحَابُ الشِّمَالِ (41) فِي سَمُومٍ وَحَمِيمٍ (42) وَظِلٍّ مِّن يَحْمُومٍ (43) لَّا بَارِدٍ وَلَا كَرِيمٍ (44)** .[2]

ترجمة : او ملګری یاران د کینې لاس څومره بد دي ملګری یاران د کینې لاس په اور تاوده کې به وي او په سوځوونکیو اوبو کې به وی او په سیوري کې به وي د لوګي ډېر تور چې نه به بیخي سوړ وي او نه به د عزت او راحت وي .

په پورتني آیت کې د ګرمي نه د ځان خلاصولو دری واړه شیان الله ذکر کړي دي چې د دوزخ هواء به سموم وي سموم هغې هوا ته ویل کیږي چې ډېره زیاته ګرمه وي هغه باد وي چې ډېر زیات ګرم وي او بالکل د برداشت نه بیرون وي او اوبه به یې حمیم وي ددې ذکر مکرر ځله تېر شوی وو چې دا هغه اوبه دي چې دومره ګرم وي چې د څښاک لپاره مخ ته نېږدې کړل شي مخ به سوزوي او سیوری به یې یحموم وي یعنې د اور نه د را پورته شوي لوګي توتې به وي چې سیوری به یې جوړ کړی وي

---

1 **سورة الفرقان**
2 **سورة الواقعة**

چې هېڅ فايده ورڅخه نشي اخيستلی کېدلی اضافي لا د انسان لپاره دهر مصيبت لپاسه يو بل مصيبت وي .

## د دوزخ فرش او کمپل

د دوزخيانو لپاره فرش به هم اور وي او په کوم شي کې چې دوی ځان پټول وغواړي هغه به هم اور وي يعني له دوی نه به لاندې باندې اور وي او په اور کې به پټ وي الله فرمايي :

لَهُم مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِن فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ (41).[1]

ترجمة : مقرر دی دوی ته له دوزخ څخنې فرش او وي به د پاسه د دوی آغوستنې (پردې د اور) او هم داسې (لکه جزا د دې خلقو) جزا ورکوو مونږ ظالمانو ته.

## په دوزخ کې مېلمستيا

کله چې دوزخيان دوزخ ته ننوزي نو دوی ته به مېلمستيا هم ورکړله شي خو دا مېلمستيا به څه شی وي دا مونږ ته الله فرمايلي دي :

ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ (51) لَآكِلُونَ مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ (52) فَمَالِؤُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ (53)فَشَارِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيمِ (54) فَشَارِبُونَ شُرْبَ الْهِيمِ (55) هَذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّينِ (56).[2]

ترجمة : بيا به بېشکه تاسې ای ګمراهانو دروغ ويونکيو خامخا خوړونکی به يئ (په دوزخ کې) له ونې د زقوم څخه پس ډک کوونکي به يئ له هغې (ونې) څخه دګيډو خپلو لره . پس څښونکي به يئ تاسې په هغه (زقوم خوړلي شوي) باندې له اوبو

---

[1] سورة الاعراف
[2] سورة الواقعة

سوځوونکیو څخه پس څښونکی به یئ (په شان) د څښلو د اوښانو ډیرو تږو او دا د جزاء په ورځ د دوی مېلمستیا ده .

## دوزخ ته ورتلل

الله فیصله کړېده چې په دنیا کې څومره خلک دي هلته دوزخ ته یو ځل خامخا ورتلونکي دي الله فرمايي :

وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَى رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا (71) ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوا وَّنَذَرُ الظَّالِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا (72). [1]

ترجمة: او نشته هېڅوک له تاسې مګر چې دي وارېدونکي ننوتونکي دي دغه ته (یعني دوزخ ته چې مؤمن پر صراط تیریږي او کافر ترې لویږي) دی (دغه عبور علی النار) په رب ستا یقیني حکم پرې کړل شوی بیا به نجات ورکړو هغو کسانو ته چې پرهېزګاري ئې کړې ده او پرې به ږدو ظالمان په دوزخ کې پر ګونډو پرېوتلي.

صحابه کرام په خپل مینځ کې او همدارنګه وروستني علماء پدې کې مختلف دي چې ددې څه مطلب دی چې هر انسان یو ځل دوزخ ته ورتلونکی دی؟ ځینې صحابه او د هغوی نه وروسته علماء پدې نظر دي چې ددې معنی دا ده چې ټول خلک به په صراط باندې تیر شي او صراط د دوزخ په ګېډه باندې ایښودل شوی دی حضرت عبد الله بن مسعود ، حضرت جابر ، الحسن، قتادة، عبد الرحمن بن زید بن أسلم او الکلبي او داسې نور علماء په همدې نظر دي او ځینې فرمايي چې نه په سمه توګه به ټول خلک هلته یو ځل ور ننوزي خو الله به یې مسلمانانو ته داسې کړي چې سوزول به نه

[1] سورة مریم

کوي بـردا ً او سلامـا ً بـه وي دوی بـه صرف ورشي هلـته بـه وګـوري او دوی تـه بـه وويـل شي کـه چېرتـه مـو د الله اطاعت نـه وای کړی نـو دا بـه مـو ځـای وو او بېرتـه بـه ورڅخه را بـهر شي او کفـار او مـشرکـان بـه پـکې همـاغلـته پـاتې شي دا رايـه د حضرت عبد الله بـن عبـاس او ځيـنې تـابـعيـنو او علمـاوو ده .

# د دوزخ فرښتې

په دوزخ باندې ملائکې مقررې دي چې په شکل او بدن کې به ډېرې لويې لويې وي د الله د هر حکم تابع دي الله د هغوی په اړه فرمايي : **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ (6)** . [1]

ترجمة: اې هغو کسانو چې ايمان ئې راوړی دی (يعني اې مؤمنانو) وساتئ تاسې ځانونه خپل او کور کهول خپل (په اطاعت د الله ) له اور څخه چې خس اور لګوني د هغه سړي او تيږې دي په دې اور باندې مقررې دي پرښتې کلکو زړونو واله قوتناکې نه کوي نافرماني دغه (فرښتې) له الله د هغه څه چې امر ئې کړی دی دوی ته او کوي دوی هغه کار چې پرې مامورې وي (د الله له لوري) .

الله د هغه ملائکو شمېره هم مونږ ته بيان کړې دي الله فرمايي : **سَأُصْلِيهِ سَقَرَ وَمَا أَدْرَاكَ مَا سَقَرُ لا تُبْقِي وَلا تَذَرُ لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ** . [2]

ترجمة: (نو فرمائي الله ) ژر به داخل کړم دی سقر (اور د دوزخ) ته او څه شي پوه کړی ئې ته چې څه دی اور د سقر چې نه پاتې کيږي (تر هېڅ شي د غوښو بې له سوزولو او نه پريږدي (هډوکي بې له سوزولو نه) سوزوونکي تورونکي دي (دغه اور بشره د کافرو) سريو لره په هغه (اور د سقر) باندې مؤکلې دي نولس (۱۹) پرښتې.

کفارو چې کله واوريدل چې د دوزخ فرښتې صرف ۱۹ دي نو دوی يې عدد ته وکتل او پدې اړه په غلط فهمي کې واقع شول او دا خبرې يې شروع کړې چې

1 **سورة التحريم**
2 **سورة المدثر آية ٢٦-٣٠**

په ۱۹ کسانو خو زمونږ هر ډول زور رسيږي خو ديته يې فکر نه کولو چې هغه الله پيدا کړې داسې دي چې د ټولې دنيا د خلکو طاقت او زور را ټول کړل شي په هغې فرښتو کې د يوې د زور او قوت ځومې اندازې ته هم نه رسيږي نو الله وريسې وويل : وَمَا جَعَلْنَا أَصْحَابَ النَّارِ إِلاَّ مَلائِكَةً وَمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ إِلاَّ فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا .[1]

ترجمة : او نه دی ګرځولی مونږ (دا لږ) شمېر د دوی مګر فتنه ازموينه د پاره د هغو کسانو چې کافران شوي دي (چې استهزاء او ټوکې پرې کوي چې دا څه عدد دی چې مقرر شوی دی)

حافظ ابن رجب ددې آيت په تفسير کې فرمايي : والمشهور بين السلف والخلف أن الفتنة إنما جاءت من حيث ذكر عدد الملائكة الذين اغتر الكفار بقلتهم، وظنوا أنهم يمكنهم مدافعتهم وممانعتهم، ولم يعلموا أن كل واحد من الملائكة لا يمكن البشر كلهم مقاومته.

ترجمة : د پخوانيو او وروستنيو علماوو په مينځ کې دا مشهوره ده چې دوی په فتنه کې داسې واقع شول چې کله الله د ملائکو شمېره ياده کړه نو کفار يې په کموالي دوکه شول او ګمان يې وکاوه چې له دوی سره خو زور هم کېدلی شي او دوی پدې نه دي پوه چې پدې کې هر يو ددې وس لرې چې د ټولو انسانانو سره مقاومت وکوي .

او دې د دوزخ فرښتو ته الله د دوزخ خزانه دارانې ويلي دي الله فرمايي: وَقَالَ الَّذِينَ فِي النَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ادْعُوا رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ الْعَذَابِ .[2]

ترجمة: او وبه وايي هغه کسان (چې پراته دي) په اور کې خزانچيانو متصرفانو د دوزخ ته چې

---

1 **سورة المدثر آية ٣١**

2 **سورة غافر (المؤمن ) آية ٤٩**

دعاء وكړئ (زمونږ د پاره) رب خپل ته چې سپک کړي له مونږه يوه ورځ له عذابه (چې لږ څه په ارام شو) .

## په دوزخ کې خوراک او څښاک

په دوزخ کې د دوزخيانو خوراک الضريع او د الزقوم ونې به وي چې ډېرې زياتې ترخې او تر ستوني نه تېرېدونکې به وي او د دوی څښاک به داسې ګرمې اوبه وي چې خولې ته يې د څښلو لپاره نېږدې کړي نو مخ به يې ورڅخه وسوزيږي او بل څښاک به د دوزخيانو له بدنونو څخه وتلې زوې او اوبه وي الله فرمايي : **لَّيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ إِلاَّ مِن ضَرِيعٍ لا يُسْمِنُ وَلا يُغْنِي مِن جُوعٍ.** [1]

ترجمة: نه به وي دوی ته طعام خواړه مګر له اغزي لرونکې ترخې ونې څخه چې نه به څربوي بدن (د دوزخي هغه ضريع) او نه دفع کوي هېڅ لوږه (له دوی نه هغه ضريع).

**إِنَّ شَجَرَةَ الزَّقُّومِ (43) طَعَامُ الْأَثِيمِ (44) كَالْمُهْلِ يَغْلِي فِي الْبُطُونِ (45) كَغَلْيِ الْحَمِيمِ (46).** [2]

ترجمة : بېشکه (مېوه د) ونې د زقوم طعام خواړه د (ډېر لويو) ګنهګارانو (کافرانو) دي په شان د مس (او ژيړ) ويلې کړل شوي (تورې ختې د تيلو) چې ايشيږي په ګېډو کې په شان د ايېشېدلو اوبو ختېدونکيو.

**أَذَلِكَ خَيْرٌ نُزُلًا أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ (62) إِنَّا جَعَلْنَاهَا فِتْنَةً لِلظَّالِمِينَ (63) إِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِي أَصْلِ الْجَحِيمِ (64) طَلْعُهَا كَأَنَّهُ رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ (65) فَإِنَّهُمْ**

---

1 **سورة الغاشية آية ٦-٧**

2 **سورة الدخان**

لَأَكِلُونَ مِنْهَا فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ (66) ثُمَّ إِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِنْ حَمِيمٍ (67) ثُمَّ إِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَإِلَى الْجَحِيمِ (68) . [1]

ترجمة : آيا دغه (نعماء د جنت) غوره دي له جهته د مېلمستيا (جنتيانو ته) يا ونه د زقوم (غوره ده دوزخيانو ته) بېشکه مونږ ګرځولې مو ده دغه ونه فتنه د عذاب د پاره د ظالمانو بېشکه چې دا ونه ده چې را ووځي په بيخ د دوزخ کې وږي د هغې ګواکي سرونه دي د شيطانانو (په عمومي قباحت او کراهيت خپل سره) پس بېشکه دوی خامخا خوړونکي وي له هغه (زقوم) څخه پس ډک کوونکي به وي له هغه (زقوم) د نسونو خپلو (له جهته د ډېرې لوږې نه) بيا بېشکه دوی ته پر هغه (ونه د زقوم) خامخا ګډول (ګښول) به وي له اوبو اېشوليو شويو څخه (چې کُلمې به يې ټوټې ټوټې کوي) بيا بېشکه ورتله د دوی به هرو مرو (خامخا) ډېري د اور ته وي .

ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ (51) لَأَكِلُونَ مِنْ شَجَرٍ مِنْ زَقُّومٍ (52) فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ (53) فَشَارِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيمِ (54) فَشَارِبُونَ شُرْبَ الْهِيمِ (55) هَذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّينِ (56) . [2]

ترجمة : بيا به بېشکه تاسې اى ګمراهانو دروغ ويونکيو خامخا خوړونکى به يئ (په دوزخ کې) له ونې د زقوم څخه پس ډک کوونکي به يئ له هغې (ونې) څخه دګېډو خپلو لره . پس څښونکي به يئ تاسې په هغه (زقوم خوړلي شوي) باندې له اوبو سوځوونکيو څخه پس څښونکى به يئ (په شان) د څښلو د اوښانو ډېرو تږو او دا د جزاء په ورځ د دوی مېلمستيا ده .

په پورتنيو آيتونو کې د دوزخ خوراک يوه ونه زقوم ياده شوېده دا يوه مرداره ونه ده چې د

---

[1] سورة الصافات
[2] سورة الواقعة

دوزخ په بيخ کې به يې بيخ وي او د هغې شاخونه به د دوزخ په هره برخه کې خپاره شوې وي او دا به په شکل کې هم ډېره بده وي او ميوه به يې هم په شکل کې ډېره بده وي په يو ځای کې خو ددې امله د شيطانانو له سرونو سره تشبيه ورکړل شوېده او د شيطانانو د سرونو په اړه په نفسونو کې يو بد شکل پروت دی اګر که چا د هغوی سرونه ليدلي هم نه دي خو دا ونه سره ددې چې ډېره بده به وي ، خوند به يې هم ډېر تريخ او بد وي ، شکل به يې هم ډېر بد وي لکن څرنګه چې دوزخيان په لوږه کې داسې حد ته ورسيږي چې د خوراک نه يې بله چاره نه ويني نو ددېنه به خپله ګېډه ډکوي او کله چې خپله ګېډه تړې ډکه کړي دا به د دوی په ګېډو کې داسې په جوش وي لکه زيتون تيل چې جوش خوري او ددېنه به دوی ته ډول ډول دردونه او تکليفونه محسوس کيږي او چې په همدې حال کې وي نو د تږې بد او سخت احساس به وکوي د تندې د ماتولو لپاره به حميم ورته پيش کړل شي هغه به داسې ګرمې اوبه وي چې په خپله ګرمي کې به آخري حد ته رسېدلې وي پداسې توګه چې د څښلو لپاره خولې ته نېږدې کړل شي د مخ غوښې به تولې وسوزوي خو دوی به چې ددېنه بغير بله چاره او لاره نه ويني نو لکه اوښان داسې به يې وڅښي خو د دوی په زړونو کې چې د اوبو کوم شوق وو او له دوی سره چې کومه تنده وه هغه به پرې ماته نشي بلکه هغه اوبه چې دوی څښلې وي د دوی کُلمې به ټولې سره پرې پرې کړي لکه الله چې فرمايي : **كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ فِي النَّارِ وَسُقُوا مَاءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ (15)**. [1]

ترجمة : (آيا هغه کس چې په جنت کې وي او په نعمتونو کې وي) په شان د هغه دی چې تل دی په اور د دوزخ کې او ورڅښولی به شي پرې اوبه ډېرې تودې پس پرې به کړي (ټوټې ټوټې به کړي

[1] **سورة محمد**

دغه اوبه) کُلمې د دوی سره هېڅکله برابر نه دي) .

دا به د دوزخیانو مېلمستیا او خوراک وي (الله د مونږ او ټول مؤمنان ورڅخه وساتي) الله ددې خوراکونو په اړه فرمایي :

إِنَّ لَدَيْنَا أَنْكَالًا وَجَحِيمًا (12) وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَعَذَابًا أَلِيمًا (13). [1]

ترجمة : بېشکه په نزد زمونږ دي (لپاره د منکرانو په آخرت کې) ځنځیرونه درانه او سوزوونکي او طعام نښتونکی په مری کې (چې د زقوم او ضریع ونه ده) او عذاب دردناک.

فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هَاهُنَا حَمِيمٌ (35) وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ (36) لَا يَأْكُلُهُ إِلَّا الْخَاطِئُونَ (37) . [2]

ترجمة: نو نشته ده ته نن ورځ په دې ځای کې کوم دوست (دافع د عذاب) او نشته هېڅ طعام (چې وئې خوري) مګر خو (د دوزخیانو د زخمونو) له وینو او زوو ځنې چې نه خوري دغه (غسلین) مګر همغه خطاکاران ګناهکاران (ئې خوري)

وَقُلِ الْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ فَمَن شَاء فَلْيُؤْمِن وَمَن شَاء فَلْيَكْفُرْ إِنا أَعْتَدْنَا لِلظالِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا وَإِن يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاء كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ وَسَاءتْ مُرْتَفَقًا(٢٩) . [3]

ترجمة : ووایه (اې محمده ﷺ! دوی ته اسلام قرآن) حق دی له رب ستاسې پس هرڅوک چې اراده (د ایمان) وکړي نو ایمان دې راوړي! او هرڅوک چې اراده (د کفر) وکړي نو کافر د شي بېشکه چې مونږ تیار کړی مو دی لپاره د ظالمانو

---

1 سورة المزمل
2 سورة الحاقة
3 سورة الكهف

(كافرانو داسې) اور چې چاپېرې شوې دي له دوی پردې د هغه (چې هغه پردې به هم د اور وي) او که فرياد وکړي (دوی له تندې) نو فرياد به يې واخيستی شي (په ورکولو د داسې) اوبو (سره) لکه زوې (يا د تېلو خټې) چې وريتوي به مخونه بد څيز د څښلو دي (دغه زوې) او بد دی (دغه اور ځای د آرام يا) له وجې د انتفاع.

# په دوزخ کې بدنونه

کله چې دوزخ ته دوزخیان ورشي هلته به یې بدنونه ډېر لوی وي او په احادیثو کې یې چې ذکر راغلی دی نو په هغه اندازه باندې انسان ته سخت شي چې د هغه تصور په هغه قسم وکوي لکه څنګه به چې هغوی وي دوی به ډېر لوی لوی بدنونه لري پداسې توګه چې صحیح اندازه یې یوازې هغه ذات معلومولی شي چې دوی یې پیدا کړي دي په یو حدیث کې حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **ما بین منكبي الكافر في النار مسيرة ثلاثة أيام للراكب المسرع .** [1]

ترجمة : (په دوزخ کې) د کافر د دوو اوږو تر مینځ فاصله به دومره وي چې یو تیز سپور به پکې د دریو ورځو سفر کوي .

په بل روایت کې حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **ضرس الكافر، أو ناب الكافر، مثل أحد، وغلظ جلده مسيرة ثلاث.**

ترجمة : د کافر غاښ به د اُحد د غره په اندازه وي او د هغه د څرمن پنډ والی (ډبل والی) به د دریو شپو په اندازه وي .

حضرت زید بن ارقم فرمایي : **إن الرجل من أهل النار ليعظم للنار، حتى يكون الضرس من أضراسه كأحد.** [2]

ترجمة : بېشکه د اهل النار نه یو کس به داور لپاره دومره لوی کول کیږي چې د غاښونو څخه به یې یو غاښ لکه د اُحد دومره وي .

---

[1] **رواه مسلم**
[2] **رواه الامام احمد**

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :
إن غلظ جلد الكافر اثنان وأربعون ذراعاً، وإن ضرسه مثل أحد، وإن مجلسه من جهنم ما بين مكة والمدينة. [1]

ترجمة : بېشکه د کافر د څرمن ډبل والی به ٤٢ ګزه وي او د هغه يو غاښ به لکه د اُحد دومره وي او د هغه د کېناستلو ځای به دومره وي لکه د مکې او مدينې په مينځ کې چې څومره فاصله ده .

## په دوزخ کې عذاب

په دوزخ کې اور ډېر زيات سخت وي او هلته مختلف ډوله عذابونه به وي که انسان هرڅو کوښښ وکوي چې له هغې نه ځان خلاص کړي هېڅ لاره به نه وي هغه چې د اور نه د ځان دخلاصولو لپاره کوم وخت وو هغه به تېر شوی وي الله د هغه حالت په اړه فرمايي :

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ وَمَاتُواْ وَهُمْ كُفارٌ فَلَن يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ الأرْضِ ذَهَبًا وَلَوِ افْتَدَى بِهِ أُوْلَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَمَا لَهُم مِّن ناصِرِينَ . [2]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي او مړه شوي دي حال دا چې دوی کافران دي نو له سره به قبول نشي له يوه د دوی څخه په ډک والي د زمکې سره زر او اګر که فديه ورکړي دی په دغه (ټولو زرو) سره دغه کسان (چې په کفر مړه دي) شته دوی لره عذاب دردناک او نشته دوی لره هېڅ مددګاران (چې مدد ورسره وکړي) .

---

1 رواه الترمذي
2 سورة آل عمران آية ٩١

په بل ځای کې فرمایي : اِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ لَوْ أَنَّ لَهُم ما فِي الأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لِيَفْتَدُواْ بِهِ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ .[1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي که وی دوی ته هغه (اقسام د اموالو) چې په زمکه کې دي ټول او په قدر د دې نور (هم) له دې سره شي د پاره د دې چې فدیه ورکړي دوی په هغه سره له عذابه د ورځې د قیامت څخه نو قبوله به نه کړه شي (دا فدیه) له دوی څخه او شته دوی ته عذاب ډېر دردناک.

کله چې د دوزخ خلک دوزخ ته لاړ شي د هغوی به بالکل دا په یاد نه وي چې دوی په دنیا کې ښه ژوند درلود ، ښه کور یې وو او په راحت کې اوسېدو دا به هرڅه د اول ځل ورتللو سره ورڅخه هېر شي حضرت انس بن مالک فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **يؤتى بأنعم أهل الدنيا من أهل النار يوم القيامة، فيصبغ في النار صبغة، ثم يقال: يا ابن آدم، هل رأيت خيراً قط؟ هل مر بك نعيم قط؟ فيقول: لا والله يا رب.**[2]

ترجمة : هغه کس به د قیامت په ورځ راوستل شي چې په دنیا کې یې د نعمتونو څخه ډک ژوند وو او په اور کې به یوه غوټه (غوپه) ورکړل شي بیا به ورته ویله شي اې انسانه په دنیا کې د کله هم څه خیر لیدلی وو؟ څه نعمت درکړل شوی وو؟ دی به ورته وایي نه والله ربه ...

حضرت انس بن مالک فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **يقول الله تبارك وتعالى لأهون أهل النار عذاباً لو كانت لك الدنيا وما فيها،**

---

1 **سورة المائدة**
2 **صحيح مسلم**

أكنت مفتدياً بها؟ فيقول: نعم فيقول أردت منك أهون من هذا، وأنت في صلب آدم أن لا تشرك (أحسبه قال:) ولا أدخلك النار، فأبيت إلا الشرك .[1]

ترجمة : الله به هغه کس ته ووايي چې په ټولو خلکو کې يې سپک عذاب وي په دوزخ کې که چېرته اوس ټوله دنيا او هغه څه چې په دنيا کې وو ټول ستا وی هغه دې اوس ددې اور نه د ځان دخلاصولو په بدل کې ورکول؟ هغه به وايي هو ربه الله به ورته وفرمايي : ما په دنيا کې تردې کم شی درڅخه غوښتي وو کله چې ته د حضرت آدم په شا کې وې هغه دا چې بنده ته به شرک نه کوي (فکر کوم چې ويې ويل) او زه به تا اور ته نه داخلوم لکن تا انکار وکولو او شرک د وکولو .

پيسې او دولت خو پرېږده چې پدې ورځ به يو انسان وايي چې کاش چې داسې شوی وای چې زما زامن ، زما مېرمن او زما خپلوان ددې اور په فديه کې ورکړل شوي وای ما هغوی ورکړي وای خو چې زه ددې اور نه خلاص وای الله د هغه حالت په اړه فرمايي : **يُبَصَّرُونَهُمْ يَوَدُّ الْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِي مِنْ عَذَابِ يَوْمِئِذٍ بِبَنِيهِ (11) وَصَاحِبَتِهِ وَأَخِيهِ (12) وَفَصِيلَتِهِ الَّتِي تُؤْوِيهِ (13) وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا ثُمَّ يُنْجِيهِ (14) كَلَّا إِنَّهَا لَظَى (15) نَزَّاعَةً لِلشَّوَى (16).**[2]

ترجمة : (او نه به کوي پوښتنه يو دوست له بل دوسته ځکه چې هر څوک به په خپل ځان مشغول وي) اګر که دوی سره ووينې او ښه به يې وپېژني خوښوي به مجرم ګنهګار (کافر) چې فديه ورکړي له عذابه د دغې ورځې په زامنو خپلو سره او ملګرې ښځې خپلې سره او ورور خپل سره او خپلوانو قبيلو خپلو هغو سره چې ځايونه ئې ورکول دوی ته په دنيا کې او هغه څوک چې په

[1] **صحيح البخاري و مسلم**
[2] **سورة المعارج**

زمکه کې دي تول بيا وساتي ځان خپل نه ده داسې چې آرزو کوي دوی بېشکه دا (اور د دوزخ) لمبې وهونکی دی ويستونکی دی (له کفارو څخه) د اينې (يا د پوستکو د لاسونو او د پښو د دوی) .

## په عذاب کې فرق

لکه مخکې چې تېر شول چې دوزخ طبقې دی ځينې يې سختې او ځينې يې اسانې دي پدې توګه د دوزخ په عذاب کې ډېر فرق موجود دی او کله چې دوزخيان دوزخ ته لاړ شي هلته به دوی په مختلفو مرتبو تقسيم شي څوک به سخت عذاب ته ور ولېږل شي او څوک به په اسانه عذاب مبتلی شي لکن دا خبره په ذهن کې لرئ چې مخکې مونږ يو ځل ذکر وکولو چې په دوزخ کې چې هغه کمه مرتبه عذاب دی هغه هم د انسان تر برداشت څو چنده وتلی دی لکن هلته به په نسبت بل عذاب ته سپک وي الله هم ښکاره کوي چې په دوزخ کې به د عذاب فرق وي الله فرمايي :

إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الأَسْفَلِ مِنَ النارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا . [1]

ترجمة : بېشکه منافقان دي په طبقه ډېره ښکته کې له اوره (د دوزخ) او له سره به نه مومې ته دوی ته مددګار (له عذابه خلاصوونکی) .

وَيَوْمَ تَقُومُ الساعَةُ أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ . [2]

ترجمة : او په هغه ورځ کې چې قائم شي قيامت (نو وبه ويلی شي له جانبه د الله ملائکو ته) ننباسئ تاسې آل د فرعون (سره له فرعون) په ډېر سخت عذاب کې (له عذابه د برزخ) .

---

1 سورة النساء آية ٤٥
2 سورة غافر (المؤمن) آية ٤٦

الَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ اللّهِ زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُواْ يُفْسِدُونَ.[1]

ترجمة: هغه کسان چې پخپله کافران شوي دي او اړولي دي دوی (نور خلق هم په دنیا کې) له لیارې د الله زیات به کړو مونږ دوی ته (په آخرت کې) یو عذاب د پاسه د بل په سبب د هغه چې وو دوی چې فساد به یې کاوه (چې کفر او منع ده د اسلامه).

د علم تفسیر علماء ددې آیتونو په تفسیر کې زیاتوي چې یو داسې کافر وي چې هغه صرف د اسلام او ایمان دمنلو نه انکار کړی وي بل هغه کافر وي چې هغه نه یوازې د ایمان نه انکار کړی وي بلکه هغه په مؤمنانو ظلمونه، تجاوز او نور زیادتونه هم کړي وي د مسلمانانو قتلونه، تعذیبونه او د اسلام له لارې د نورو مسلمانانو د اړولو لپاره یې کوښښونه هم کړي وي همدارنګه د کفر نه وروسته یې نور بد اعمال زیات کړي وي نو په آخرت کې به خامخا دوی دواړه سره یو شان نه وي دواړو ته به د خپلو عملونو په اندازه باندې عذاب سخت او اسان وي.

په احادیثو کې هم دا په ګوته شوېده چې په دوزخ کې به د عذاب مختلفې درجې او اندازې وي د حضرت سمرة څخه روایت دی هغه له رسول الله ﷺ څخه روایت کوي چې هغه ﷺ فرمایل : **إن منهم من تأخذه النار إلى كعبيه، ومنهم من تأخذه إلى ركبتيه، ومنهم من تأخذه إلى حجزته، ومنهم من تأخذه إلى ترقوته (وفي رواية) إلى عنقه**.[2]

ترجمة : بېشکه په اور کې به ځینې داسې خلک وي چې اور به تر ښنګریو ور رسېدلی وي او ځینې به

---

[1] **سورة النحل آية ٨٨**

[2] **رواه مسلم**

داسې وي چې تر زنګنونو به يې وي او ځينې به داسې وي چې تر هغه ځايه پورې يې اور رسيږي چېرته چې انسان پرتو ګاڼ تړي او ځينې به داسې وي چې تر اوږو پورې (ترقوة په عربي کې هغه هډوکي ته ويل کيږي چې له اوږو سره د شا لخوا لوړ ښکاره کيږي يو په ښي او بل په چپ طرف کې) او په يو روايت کې تر غاړې پورې ياد کړل شوی دی .

حضرت نعمان بن بشير فرمايي ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې هغه فرمايل : **إن أهون أهل النار عذاباً يوم القيامة لرجلٌ يوضع في أخمص قدميه جمرتان يغلي منهما دماغه، ما يرى أن أحداً أشدُّ منه عذاباً، وإنه لأهونهم عذاباً.** [1]

ترجمة : بېشکه د قيامت په ورځ به تر ټولو خلکو د سپک عذاب لرونکی يو سړی وي چې په تله (د پښې په ښکتنۍ برخه) کې به يې ورته سکروټه کېښودل کيږي او ددې سکروټې له حرارت څخه به دده دماغ جوش خوري دی به دا فکر کوي چې له ده نه به د بل چا سخت عذاب نه وي او حال دا چې دی به په ټولو خلکو کې د سپک عذاب لرونکی وي .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إن أدنى أهل النار عذابا ينتعل نعلين من نار يغلي دماغه من حرارة نعليه.** [2]

ترجمة : بېشکه د سپک عذاب لرونکی به هغه کس وي چې د اور څپلۍ به ور په پښو کړل شي د هغې څپليو د حرارت نه به دده دماغ جوش خوري .

## د څرمنو کباب کېدل

---

[1] **صحيح البخاري**
[2] **صحيح مسلم**

په دوزخ کې به دوزخیانو ته په اور داسې سزا ورکوله کیږي چې د دوی څرمنې به کباب او پخې شي الله فرمايي :

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ بِآيَاتِنَا سَوْفَ نُصْلِيهِمْ نَارًا كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ بَدَّلْنَاهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا لِيَذُوقُواْ الْعَذَابَ إِنَّ اللّهَ كَانَ عَزِيزًا حَكِيمًا (56) . [1]

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې کافران (منکران) شوي دي په آیتونو زمونږ ژر به ننباسو مونږ دوی اور ته (چې پکې سوزول کیږي) هر کله چې پاخه شي (وسوزیږي) پوستکي د دوی (په اورکې نو) بدلوو مونږ دوی ته پوستکي غیر له هغو له پاره د دې چې و څکي دوی (تل تر تله نوی نوی) عذاب بېشکه چې الله دی ښه غالب قوي (د احکامو په انفاذ) لوی حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي) .

## د کُلمو ویلې کېدل

د دوزخیانو لپاره بل ډول عذاب دادی چې هغوی ته به هغه ګرمې اوبه ور څښول کیږي چې مخ ته نېږدې کړل شي نو مخ سوزوي او بیا به دا اوبه د دوی په سرونو باندې ور اړول کیږي چې د هغې د سختې ګرمې له امله به د دوی کُلمې او هغه څه چې د دوی په ګېډو کې دي هرڅه ویلې کیږي الله فرمايي:

فَالَّذِينَ كَفَرُوا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِّن نَّارٍ يُصَبُّ مِن فَوْقِ رُؤُوسِهِمُ الْحَمِيمُ (19) يُصْهَرُ بِهِ مَا فِي بُطُونِهِمْ وَالْجُلُودُ (20) . [2]

ترجمة : پس هغه کسان چې کافران شوي دي څکختې (جوړولی) شي دوی د پاره جامې له اوره اچولی

---

[1] **سورة النساء**

[2] **سورة الحج**

به شي (په شدت سره) له پاسه د سرونو د دوی اوبه سرې جوش کړل شوې چې خوړين به شي په دغو اوبو سره هغه (کُلمې) چې په ګېډه د دوی کې دي او پوستکي .

پدې اړه د رسول الله ﷺ حديث دی حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إن الحميم ليصب على رؤوسهم، فينفذ حتى يخلص إلى جوفه فيسلت ما في جوفه، حتى يمرق من قدميه، وهو الصهر، ثم يعود كما كان.** [1]

ترجمة : دا ګرمې اوبه به د دوی په سر ونو باندې اړول کيږي هغه به په دوی کې ننوزي تردې چې د هغوی معدې ته ورسيږي هلته د دوی په معده کې چې هرشی وي هغه به ټول ويلې شي تردې چې تر قدمونو څخه يې وبهيږي او دېته الصهر وايي بيا به دا دوزخې بېرته هغه حالت ته لاړ شي څنګه چې وو او دا سزا به بيا بيا ورکوله کيږي .

## د مخ سوزېدل

په انسان کې تر ټولو اندامونو د عزت ځای مخ دی ددې امله خو رسول الله ﷺ مونږ په مخ باندې له وهلو څخه منع کړي يو او په قيامت او دوزخ کې د دوزخيانو لپاره يو عذاب دادی چې د هغوی مخونه به سوزول کيږي د هغوی مخونه به توهين کيږي او د هغوی د مخونو عزت به نه کيږي الله فرمايي :

---

[1] **سنن الترمذي**

وَمَن يَهْدِ اللّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُمْ أَوْلِيَاء مِن دُونِهِ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى وُجُوهِهِمْ عُمْيًا وَبُكْمًا وَصُمًّا مَّأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنَاهُمْ سَعِيرًا (97).[1]

ترجمة : او هر هغه چاته چې سمه لیاره و ښودله الله نو همغه د سمې لیارې موندونکی دی او هرڅوک چې ئې گمراه کړي (الله ) نو له سره به نه مومې ته دوی ته نور دوستان بې له دغه (الله چې سمه لیاره ور وښیي) او را جمع به کړو (مونږ) دوی لره په ورځ د قیامت کې (نسکور تلونکی په سبب د بدو عملونو د دوی) پر مخونو خپلو چې ړانده او گونگیان به وي او کانه به وي (په سبب د بدو اعمالو خپلو) ځای د دوی دوزخ وي هر کله چې غلې شي (لمبې د دوزخ) زیات به کړو دوی ته تیز اور.

## په دوزخ کې به پړمخې غورځول کیږي

کله چې دوی په دوزخ کې غورځول کیږي نو سر ښکته به غورځول کیږي مخونه به یې په زمکه باندې لگیږي الله فرمایي :

وَمَن جَاء بِالسَّيِّئَةِ فَكُبَّتْ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ هَلْ تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (90).[2]

ترجمة : او هر هغه څوک چې راشي له بدي (شرک او کفر) سره پس نسکور به وغورځول شي مخونه د دوی په اور (د دوزخ کې او وبه ویل شي دوی ته له جانبه د الله ) آیا جزاء درکوله کیږي (بلکه نه د رکوله کیږي) مگر (جزاء د شرک او نورو گناهونو) هغه چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې) .

---

1 سورة الاسراء
2 سورة النمل

# د دوزخ اور به په مخ لګیږي

کله چې په دنیا کې مونږ د څه شي سره مخامخ کیږو نو مونږ ته په طبعي ډول ډیره ضرور ښکاره کیږي چې خپل مخ تر بنه وساتو او خپل مخ پټ کړو ځکه د خطر په وخت کې زمونږ لاسونه د مخ د حفاظت لپاره تر هرڅه اول پورته کیږي لکن په دوزخ کې به د دوزخیانو د مخ او اور په مینځ کې هیڅ ډول پرده نه وي او دا اور به راساً د دوی په مخ لګیږي الله فرمایي :

لَوْ يَعْلَمُ الَّذِينَ كَفَرُوا حِينَ لَا يَكُفُّونَ عَن وُجُوهِهِمُ النَّارَ وَلَا عَن ظُهُورِهِمْ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ (39) .[1]

ترجمة : که پوهیدلي وی هغه کسان چې کافران شوي دي هغه وخت چې نه به شي منع کولی له مخونو خپلو اور (د دوزخ) او نه له شاګانو خپلو (ځکه چې اور به تر چاپیر وي) او نه به له دوی سره مرسته (مدد) وکړل شي.

تَلْفَحُ وُجُوهَهُمُ النَّارُ وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ (104).[2]

ترجمة : سوزوي مخونه د دوی اور (د دوزخ) او دوی په دغه اور کې غونج وچولي (ګونج تندي) (بدرنګه او بد مخي) به وي.

سَرَابِيلُهُم مِّن قَطِرَانٍ وَتَغْشَى وُجُوهَهُمْ النَّارُ (50) .[3]

ترجمة : قمیصونه د دوی به له نانزړو (ګوګرډو) څخه وي او پټ به کړي مخونه د دوی اور (د دوزخ).

---

1 سورة الانبياء
2 سورة المؤمنون
3 سورة ابراهيم

أَفَمَن يَتَّقِي بِوَجْهِهِ سُوءَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَقِيلَ لِلظَّالِمِينَ ذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ (24). [1]

ترجمة : آیا پس هغه څوک چې ځان ساتي په مخ خپل سره له سختي د عذاب د ورځې د قيامت (په شان د هغه مامون دی؟ بلکه نه دی) او وبه ويل شي ظالمانو ته چې و څکئ (خوند) د هغه عمل چې وئ تاسې چې کوه به مو (په دنيا کې چې د انبياوو تکذيب وو) .

کله چې تاسې کباب کوئ ليدلي مو دي چې څنګه يې خلک په اور باندې اړوي او را اړوي؟ کله تاسې ليدلي دي چې د غوښې بوټۍ خلک په اور پخوي او يا مو کله مکمل ماهی په اور باندې کباب پوخ کړی؟ هغه چې څنګه خلک په اور باندې اړوي او را اړوي داسې به دا مجرمان په اور باندې او ددوی مخونه په اور باندې اړول کيږي او را اړول کيږي او دوی به ارمانونه کوي چې دې ځای ته ولې راغلل ددې حالت په اړه الله فرمايي :

يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُولُونَ يَا لَيْتَنَا أَطَعْنَا اللَّهَ وَأَطَعْنَا الرَّسُولَا (66). [2]

ترجمة : هغه ورځ چې تاوولی به شي مخونه د دوی په اور کې وائي به دوی اې کاشکي مونږ اطاعت کړی وی د الله او اطاعت کړی وی مونږ د رسول (د الله )

## په اور کې کش کېدل

په دوزخ کې به د کفارو بل عذاب دا وي چې هغوی به په مخونو باندې په اور کې را کش کول کيږي له يوې خوا به دا سخت عذاب او له بله پلوه به

---

[1] سورة الزمر
[2] سورة الاحزاب

دا د دوی يو ډول توهين او بې عزتي وي الله ددې حالت په اړه فرمايي :

إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ (47) يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلَى وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ (48) . [1]

ترجمة : هغه ورځ چې را کش کړل به شي دوی په اور (د دوزخ) کې په مخونو د دوی (وبه ويل شي دوی ته زجراً چې) و څکئ تاسې (مزه) د مس کولو رسېدلو (د اور) د دوزخ.

الَّذِينَ كَذَّبُوا بِالْكِتَابِ وَبِمَا أَرْسَلْنَا بِهِ رُسُلَنَا فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ (70) إِذِ الْأَغْلَالُ فِي أَعْنَاقِهِمْ وَالسَّلَاسِلُ يُسْحَبُونَ (71) فِي الْحَمِيمِ ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُونَ (72). [2]

ترجمة : هغه (کسان) چې تکذيب يې کړی دی په دغه (قرآن) او په هغو (شيانو) چې را لېږلي دي په هغو سره رسولان (پخواني) خپل پس ژر ده چې پوه به شي دوی (چې د دغه تکذيب بده نتيجه کيږي کله چې وي به (د اور) غاړکی په غاړو د دوی کې او ځنځيرونه به هم وي (په پښو د دوی) چې را کښلی کيږي به دوی په اوبو تودو کې بيا به په اور (د دوزخ) کې سوزول ورستول کيږي دوی (او اور به له داخله او له خارجه هغوی را چاپېر کړي) .

## د مخونو توريدل

په آخرت کې بل سپکاوی او يو ډول عذاب دادی چې د ځينې خلکو مخونه به تور شي او دا به هغه کسان وي چې هغوی په دنيا کې کفر کړی وي او د سمې لارې متابعت يې نه وي کړی الله پدې هکله فرمايي :

---

1 سورة القمر
2 سورة غافر (المؤمن)

يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكْفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ فَذُوقُواْ الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ (106).[1]

ترجمة : په هغه ورځ چې سپين شي (ځينې) مخونه (د مؤمنانو) او تور به شي (ځينې) مخونه (د كافرانو) پس هر څه هغه كسان چې تور شوي دي مخونه د دوى (نو وبه ويل شي دوى ته) آيا كافران شوي يئ تاسې وروسته له ايمان راوړلو ستاسې؟

او په هغه ورځ به د مخونو تور والى داسې نه وي لكه په دنيا كې چې چا د چا د مخ توريدل ليدلي وي بلكه داسې تك تور به وي لكه تورې شپې الله فرمايي :

وَالَّذِينَ كَسَبُواْ السَّيِّئَاتِ جَزَاء سَيِّئَةٍ بِمِثْلِهَا وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ مَّا لَهُم مِّنَ اللّهِ مِنْ عَاصِمٍ كَأَنَّمَا أُغْشِيَتْ وُجُوهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ اللَّيْلِ مُظْلِمًا أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (27).[2]

ترجمة : او هغه كسان چې كسب ئې كړى دى د بدو (لكه كفر او نفاق) جزا د بدي (د دوى) په قدر د بدي ده (نه ترې زياته) او پټوي به دوى لره ذلت (رسوائي) نه به وي دوى ته له (عذابه د) الله هيڅ ساتونكى ګواكي پټ كړل شوي دي مخونه د دوى په قطعو (ټوټو) د شپې سره حال دا چې تك تور به وي دغه صاحبان د اور (د دوزخ) دي هم دوى په دغه دوزخ كې تل اوسېدونكي دي.

---

[1] **سورة آل عمران**
[2] **سورة يونس**

# په کفارو د اور احاطه

اور به له هره لوري په کفارو باندې احاطه کړې وي معنی دا چې د دوی به هېڅ داسې څه نه وي چې له امله یې اور له دوی څخه لرې شي دوی به په همدې اور کې وي ځکه چې داسې څه سبب نشته چې دوی له اور نه خلاص کړي نو ځکه به پدې اور کې دوی همېشه وي الله فرمایي :

بَلَى مَن كَسَبَ سَيِّئَةً وَأَحَاطَتْ بِهِ خَطِيئَتُهُ فَأُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (81). 1

ترجمة : بلکه (رسیږي تاسې ته دائمي اور) هر چا چې کسب کړه بدي او چاپېره شوه پر ده ګناه د ده (چې تر مرګه پورې کفر دی) نو هم دغه کسان صاحبان د اور (د دوزخ) دي دوی به په هغه اور (د دوزخ) کې تل وي .

او دا به هغه کسان وي چې هغوی کفار او مشرکین دي او هغه کسان چې یو ځل الله ورته د ایمان شرف ورکړی وي او بیا د خپلو ګناهونو له امله دوزخ ته تللي وي هغوی به هلته صرف د خپلو ګناهونو په اندازه وي او بیا د هغوی کړې نیکي به هغوی ته په ښه ورشي د هغې په بدل کې به دوی ته په جنت کې ځای ورکړل شي لکن هغه کسان چې په ایمان مشرف شوي نه وي د هغوی هیڅ نیکي هغوی ته څه ډول فایده نشي رسولی د هغوی ځای د همېش لپاره دوزخ دی په هغوی به له هرلوري اور احاطه کړې وي له پاسه او له لاندې به ورته اور وي الله د هغوی په اړه فرمایي :

---

1 سورة البقرة

إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُواْ عَنْهَا لاَ تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاء وَلاَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ (40) لَهُم مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِن فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ (41). [1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې نسبت د دروغو کوي آیتونو زمونږ ته او تکبر کوي (له قبول) د هغو وبه نه پرانیستلی شي دوی ته ورونه د آسمان (چې پورته یوړل شي نیک عملونه او ارواح د دوی) او نه به داخل شي دوی جنت ته تر هغه پورې چې ننوزي اوښ په سوري د ستنې کې او هم داسې (لکه جزا د متکبرانو) جزا ورکوو مونږ مجرمانو (کافرانو) ته مقرر دی دوی ته له دوزخ ځنې فرش او وي به د پاسه د دوی آغوستنې (پردې د اور) او هم داسې (لکه جزا د دې خلقو) جزا ورکوو مونږ ظالمانو ته .

يَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ (54) يَوْمَ يَغْشَاهُمُ الْعَذَابُ مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ أَرْجُلِهِمْ وَيَقُولُ ذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (55). [2]

ترجمة : بیړه (تلوار) کوي کفار په تا (په راتلو) د عذاب (په دنیا کې) حال دا چې بېشکه دوزخ خامخا احاطه کوونکی دی په کافرانو (یاده کړه اې محمده ﷺ! هغه) ورځ چې لاندې به کړي دوی عذاب له پاسه (د سرونو) د دوی او له لاندې د پښو د دوی نه او وبه وایي دوی ته (الله د پرښتو په ژبه) و څکئ تاسې (خوند د سزا) د هغه (عمل) چې وئ تاسې چې کاوه به مو (په دنیا کې) .

لَهُم مِّن فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِن تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ذَلِكَ يُخَوِّفُ اللَّهُ بِهِ عِبَادَهُ يَا عِبَادِ فَاتَّقُونِ (16). [3]

---

[1] **سورة الاعراف**
[2] **سورة العنكبوت**
[3] **سورة الزمر**

ترجمة : وي به دوى ته د پاسه د دوى طبقات له اوره او د لاندې د دوى طبقات (د اور) دغه (مذكور عذاب) ويروي الله په هغه سره بندگان (مؤمنان خپل) اې بندگانو زما پس وويرېږئ له ما (په اجتناب د معاصيو) .

وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ (49). 1

ترجمة : او بېشكه چې دوزخ هرور مرو چا پېر كېدونكى دى په كافرانو.

او له بلې خوا دا هم الله مونږ ته ښكاره كړېده چې دا كفار به اور ته په يوه قلا ډوله ځاى كې را بند شوى وي چې هېڅ ډول د تېښتې امكان به يې نه وي او نه به تړېنه د تېښتې لاره وي او نه به دوى تښتېدلى شي الله فرمايي :

وَقُلِ الْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ فَمَن شَاء فَلْيُؤْمِن وَمَن شَاء فَلْيَكْفُرْ إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلظَّالِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا وَإِن يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاء كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ وَسَاءتْ مُرْتَفَقًا (29). 2

ترجمة : ووايه (اې محمده ﷺ! دوى ته اسلام قرآن) حق دى له رب ستاسې پس هرڅوک چې اراده (د ايمان) وكړي نو ايمان دې راوړي! او هرڅوک چې اراده (د كفر) وكړي نو كافر د شي بېشكه چې مونږ تيار كړى مو دى لپاره د ظالمانو (كافرانو داسې) اور چې چاپېر شوى دى له دوى پردې د هغه (چې هغه پردې به هم د اور وي) او كه فرياد وكړي (دوى له تندې) نو فرياد به يې واخيستى شي (په وركولو د داسې) اوبو (سره) لكه زوې (يا د تېلو ختې) چې وريتوي به مخونه بد څيز د څښلو دي (دغه زوې) او بد دى (دغه اور ځاى د آرام يا) له وجې د انتفاع.

---

1 سورة التوبة
2 سورة الكهف

## اور زېرونو ته رسېدل

په دوزخ کې ډېر سخت عذابونه دي او هلته چې كوم اور دی هغه به د دوزخي تر زړه پورې رسيږي لکه لږ وړاندې چې تېر شول مونږ ددې خبرې ذكر وكولو چې د دوزخيانو به ډېر لوی بدنونه وي خو د لوی بدن سره سره به اور په دوی دومره تاثير كوي چې تر غوښه او هډوكي او هرڅه به ور تيريږي او د دوی زړونو ته به ور رسيږي او هلته به سوزول كوي الله فرمايي :

سَأُصْلِيهِ سَقَرَ (26)وَمَا أَدْرَاكَ مَا سَقَرُ (27)لَا تُبْقِي وَلَا تَذَرُ (28)لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ (29) [1].

ترجمة : (نو فرمائي الله ) ژر به داخل كړم دی سقر (اور د دوزخ) ته او څه شي پوه كړی ئې ته چې څه دی اور د سقر چې نه پاتې كيږي (تر هېڅ شي د غوښو بې له سوزولو او نه پريږدي (هډوكي بې له سوزولو نه) سوزوونكي تورونكي دي (دغه اور بشره د كافرو) لره.

د لَا تُبْقِي وَلَا تَذَرُ په تفسير كې ځينې علماء فرمايي معنی يې داده چې دا اور هډوكی ، غوښه ، ماغزه او هرڅه شی خوري او نه يې پريږدي .

په بل ځای كې الله فرمايي :

كَلَّا لَيُنْبَذَنَّ فِي الْحُطَمَةِ (4) وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْحُطَمَةُ (5) نَارُ اللَّهِ الْمُوقَدَةُ (6) الَّتِي تَطَّلِعُ عَلَى الْأَفْئِدَةِ (7) إِنَّهَا عَلَيْهِمْ مُؤْصَدَةٌ (8) فِي عَمَدٍ مُمَدَّدَةٍ (9). [2]

ترجمة : نه ده داسې (بلكه مړ به شي او خلاص به ئې نه كړي دا مال له عذابه) قسم دی چې وبه

---

[1] سورة المدثر
[2] سورة الهمزة

غورځول شي هرو مرو (خامخا) دا جمع کوونکی په هغه شي کې چې ما توونکی سوزوونکی دی د هر شي او څه شي پوه کړی ئې ته څه شی دی ماتوونکی سوزوونکی د هرشي؟ اور د الله دی بل کړل شوی هغه (اور) چې خيږي په زړونو باندې (نو سوزوي ئې) بېشکه دا اور به په دوی باندې بند کړل شوی وي په ستنو را ښکليو شويو اوږدو سره.

ددې آية په تفسير کې يو عالم محمد بن کعب القرظي فرمايي : **تأكله النار إلى فؤاده، فإذا بلغت فؤاده أنشئ خلقه** (اور به دی دده تر زړه پورې خوري کله چې اور دده زړه ته ورسيږي بيا به د سر نه پيدا کړل شي) د حضرت ثابت البناني نه روايت دی چې هغه دا آيت تلاوت کړو بيا يې وفرمايل **تحرقهم النار إلى الأفئدة وهم أحياء، لقد بلغ منهم العذاب، ثم يبكي** (اور به دوی تر زړونو پورې وسوزوي اودوی به ژوندي وي پدې توګه به دوی ته سخت عذاب رسيږي دا خبره يې وکوله او بيا يې ژړل) .

# د کُلمو را وتل

په دوزخ کې بل عذاب دادى چې د دوزخي کُلمې به بهر ته را اوزي او دى به تر هغه خپلو کلمو تاويږي او خلک به يې ټول ويني (الله د مونږ لداسې حالت نه وساتي او زمونږ جرمونه ، گناهونه، خطا گانې د را ته معاف کړي) حضرت اسامة بن زيد فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **يُجاء بالرجل يوم القيامة، فيُلقى في النار، فتندلق أقتابه في النار، فيدور كما يدور الحمار برحاه، فيجتمع أهل النار عليه، فيقولون: أي فلان، ما شأنك أليس كنت تأمرنا بالمعروف وتنهانا عن المنكر؟ قال: كنت آمركم بالمعروف ولا آتيه، وأنهاكم عن المنكر وآتيه .** [1]

ترجمة : يو کس به د قيامت په ورځ راوستل شي په اور کې به واچول شي د هغه کُلمې به په اور کې را بهر شي او بيا به له هغه کلُمو نه گرد داسې تاويږي لکه خر چې له ژرندې نه تاويږي دوزخيان به وربانديې را ټول شي ورته به وايي اې فلانيه دا ولې (ولې پدې حال کې يې) ته هغه نه يې چې تا به مونږ ته په نيکو کارونو باندې امر کاوه او له بدو څخه به د منع کولو دى به ورته ووايي هو زه داسې وم چې تاسو ته مې په نيکو کارونو امر کاوه خو ما پخپله نه کول او تاسې مې له بدو کارونو څخه منع کولئ او ما به خپله کول .

---

[1] **صحيح البخاري و مسلم**

# په دوزخ کې هتکړۍ او ځنځیرونه

سره ددې چې لکه مخکې تېر شول چې نه د دوزخ څخه د تېښتې لاره شته او نه څوک ورڅخه تښتېدلی شي خو بیا هم الله دوی ته دزیات عذاب او سپکاوي ورکولو لپاره د دوی لپاره هلته د هتکړیو ، ځنځیرونو او پړیو انتظام کړی دی چې دوی وربانډ وتړي الله یې ذکر په قرآن کریم کې کړی دی الله فرمایي :

إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ سَلَاسِلَا وَأَغْلَالًا وَسَعِيرًا (4) . [1]

ترجمة : بېشکه مونږ تیار کړي مو دي کافرانو ته ځنځیرونه او طوقونه او تود اور (لمبې وهونکی چې تل به پکې سوزي)

إِنَّ لَدَيْنَا أَنكَالًا وَجَحِيمًا (12) وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَعَذَابًا أَلِيمًا (13) . [2]

ترجمة : بېشکه په نزد زمونږ دي (لپاره د منکرانو په آخرت کې) ځنځیرونه درانه او سوزوونکي او طعام نښتونکی په مرۍ کې (چې د زقوم او ضریع ونه ده) او عذاب دردناک.

وَجَعَلْنَا الْأَغْلَالَ فِي أَعْنَاقِ الَّذِينَ كَفَرُوا هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (33) . 3

ترجمة : او وبه ګرځوو ځنځیرونه (د اور) په غاړو د هغو کسانو کې چې کافران شوي دي (تابعان دي که متبوعان آیا جزا به ورکوله شي دوی ته (بلکه نه ورکوله کیږي مګر خو د هم دغو (عملونو) چې دوی کول (په دنیا کې) .

1 سورة الدهر (الانسان)
2 سورة المزمل
3 سورة سباء

إِذِ الْأَغْلَالُ فِي أَعْنَاقِهِمْ وَالسَّلَاسِلُ يُسْحَبُونَ (71). 1

ترجمة : كله چې وي به (د اور) غاړكى په غاړو د دوى كې او ځنځيرونه به هم وي (په پښو د دوى) چې را كښلى كيږي به دوى په اوبو تودو كې بيا به په اور (د دوزخ) كې.

خُذُوهُ فَغُلُّوهُ (30) ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ (31) ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ (32) . 2

ترجمة : و نيسئ دى! پس په ځنځير سره وتړئ دى! بيا (اورد) د دوزخ ته وغورځوئ دى! بيا په ځنځير كې چې گزونه د هغه اويا گزه وي پس ننه باسئ دى (په دوزخ كې)

## د دوزخيانو معبودان او شيطانان

كفار په دنيا كې د خپلو معبودانو زيات قدر كوي او هغه ډېر لوى گڼي او همدارنگه په پخوا زمانوكې به هم چې كوم جاهل مشركين وو هغوى به هم د خپلو معبودانو زيات عزت كاوه او هغوى ته به يې سجدې كولې ، د هغوى نه به يې په كارونو كې مرسته غوښته ، او هغوى ته به يې د تكليف په وخت كې رجوع كوله ، د هغوى په نوم به يې خيراتونو او صدقې وركولې كله چې د قيامت په ورځ د حق او باطل په مينځ كې فيصله وشي نو الله به د دوى دا باطل خدايان له دوى سره اور ته ددې لپاره داخل كړي چې دوى نور هم ذليل شي او دوى پدې خبره ښه پوه شي چې دوى گمراه وو او د داسې شي عبادت يې كاوه چې اوس هغه له دوى نه خو پرېږده له خپله ځانه هم عذاب نشي لرې كولى ددې لپاره چې كه كوم د عقل خاوند وي هغه په

1 سورة غافر (المؤمن)
2 سورة الحاقة

دنیا کې لدې حالت نه خبر شي نو الله دې کافرانو ته فرمايي :

إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ أَنتُمْ لَهَا وَارِدُونَ (98) لَوْ كَانَ هَؤُلَاء آلِهَةً مَّا وَرَدُوهَا وَكُلٌّ فِيهَا خَالِدُونَ (99) .[1]

ترجمة : بېشکه تاسې او هغه (بتان ، شیطانان) چې عبادت ئې کوئ تاسې بې له الله څخه خس (خاشاک) د دوزخ يئ تاسې (له معبودانو خپلو سره) دې دوزخ ته ننوتونکي يئ که چېرې وي دغه (بتان شیطانان په رښتیا سره) معبودان نو نه به وو داخل شوي په دې دوزخ کې او دا ټول (بتان او بت پرستان) به په دې دوزخ کې تل پراته وي.

حافظ ابن رجب فرمايي : لما عبد الكفار الآلهة من دون الله، واعتقدوا أنها تشفع لهم عند الله، وتقربهم إليه، عوقبوا بأن جعلت معهم في النار إهانة لهم وإذلالاً، ونكاية لهم وإبلاغاً في حسرتهم وندامتهم، فإن الإنسان إذا قرن في العذاب بمن كان سبب عذابه كان أشد في ألمه وحسرته.

ترجمة: کله چې کفارو د الله نه بغیر د نورو خدايانو عبادت وکا او دوی دا ګمان وکولو چې دوی به د الله په وړاندې د دوی سپارښت وکوي او دوی به الله ته نېږدې کړي دوی ته پدې عذاب ورکول شو چې دوی یې هم په اور کې ورسره واچول د دوی د سپکاوي او ذلیل کولو لپاره او دوی ته د یو ډول عذاب ورکولو لپاره او د دوی د حسرت او پېښیمانتیا د زیاتولو لپاره ځکه چې انسان کله په عذاب کې د هغه چا سره یو ځای شي چې هغه دده دې عذاب ته د راتللو سبب شوی وي نو پدې سره نور هم دده درد او غم زیات شي.

[1] سورة الانبياء

د همدې وجې نه به شیطانان هم له هغه کسانو سره په دوزخ کې وي چې دوی د هغه متابعت کاوه او د هغه په خوښه یې په کفر کې ژوند کاوه الله فرمایي :

وَمَن يَعْشُ عَن ذِكْرِ الرَّحْمَنِ نُقَيِّضْ لَهُ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ (36) وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ السَّبِيلِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ (37) حَتَّى إِذَا جَاءنَا قَالَ يَا لَيْتَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ الْقَرِينُ (38) . [1]

ترجمة : او هر څوک چې اعراض کوي (سترګې پټوي) له ذکر یادولو (د قرآن) د رحمن مسلط به کړو مونږ پر هغه باندې یو شیطان پس هغه به له ده سره (دائمي) ملګرى وي (چې ئې لمسوي ګناهونو ته او لغزوي ئې له سمې لیارې نه) او بېشکه دغه (شیطان) خامخا اړوي دغه خپل ملګرى له لیارې (د حق) او ګمان کوي (دغه سترګې پټوونکي کفار له حقه) داسې چې بېشکه دوی د سمې لیارې موندونکي دي تر هغه پورې چې راشي مونږ ته نو وبه وایي (دغه اعراض کوونکي خپل ملګري ته) کاشکي چې وی په مینځ زما او په مینځ ستا کې لرې والى له مشرقه تر مغربه پس بد ملګرى (ئې ته زما) .

## په دوزخ کې پښېماني

ضروري خبره ده چې کله انسانان پدې پوه شي چې د دوی ابدي نتیجه خرابه شوه او د ټول عمر لپاره په نه قطع کیدونکې عذاب باندې د دوی سر شو اوس به نه د امتحان لپاره دوهم چانس وي او نه به د عمل کولو وخت وي او نه به څه داسې لاره وي چې انسان پرې و تښتي او نه به ددې امید وي چې زر کاله وروسته او یا لس زره کاله وروسته به دا حالت بدل شي بلکه ددې عقیده به

[1] سورة الزخرف

وي چې تول عمر به دلته پاتې وو نو انسان به پښېمانه کيږي ، ارمان به کوي ، او ژاړي به ، په دنيا کې به په تول عمر باندې ژاړي چې ده ته پدې فاني ژوند باندې هغه ابدي ژوند ورکول کېدو ده ولې وانه اخيست الله ددې لپاره چې له مخکې نه ځان ورته تيار کړو او د هغه پېښمانتيا سره مخامخ نشو مونږ ته د هغه حالت په اړه ويلي دي الله فرمايي :

وَلَوْ أَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ ظَلَمَتْ مَا فِي الأَرْضِ لاَفْتَدَتْ بِهِ وَأَسَرُّواْ النَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُاْ الْعَذَابَ وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ وَهُمْ لاَ يُظْلَمُونَ (54). [1]

ترجمة : او كه بېشكه (مملوک شي) د پاره د هر نفس چې ظلم ئې كړى وي (پخپل ځان باندې په كفر او شرک سره) هغه چې دي په زمكه كې نو خامخا به فديه وركړي دغه نفس په دغه (هر څه سره له عذابه) او وبه مومي دوى (په زړونو خپلو كې (په ترک د ايمان) پښېماني كله چې وويني دوى عذاب او فيصله به وكړه شي په مينځ د دوى (يعني د خلائقو) كې په انصاف او حال دا چې دوى به مظلومان نه وي .

كله چې كفارو ته د دوى عملنامې د شا لخوا وركړل شي ځان ته به ډېرې د هلاک دعا ګانې وغواړي خو مرګ به ورته نه راځي الله فرمايي :

وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ وَرَاء ظَهْرِهِ (10) فَسَوْفَ يَدْعُو ثُبُورًا (11) وَيَصْلَى سَعِيرًا (12). [2]

ترجمة : او هر هغه څوک چې وركړ شي كتاب عملنامه د ده وروسته تر شا د ده (په كيڼ لاس ئې پس ژر به ناري كړي دى اې هلاكه اې هلاكه

---

[1] سورة يونس
[2] سورة الانشقاق

(زما را حاضر شه! دا د وقت دی) او نن به وځي دی بل اور (د دوزخ) ته.

او په خاصه توګه کله چې د دوزخ اهل (الله د مونږ تري وساتي) اور ويني او پدې يې يقين راشي چې اوس به مو همدې اور ته ور غورځوي نو د خپل ځان لپاره به هلاکت وغواړي خو ورته به وويل شي چې يو ځل نه ډير ځله د ځان لپاره هلاکت وغواړئ الله د هغه حالت په اړه فرمايي :

وَإِذَا أُلْقُوا مِنْهَا مَكَانًا ضَيِّقًا مُقَرَّنِينَ دَعَوْا هُنَالِكَ ثُبُورًا (13) لَا تَدْعُوا الْيَوْمَ ثُبُورًا وَاحِدًا وَادْعُوا ثُبُورًا كَثِيرًا (14). [1]

ترجمة : او کله چې وغورځولی شي (کفار) له دوزخ نه په ځای تنګ کې په دغه حال کې چې (څو تنه يو ځای سره نژدې په ځنځيرونو) سره تړلی شوي وي نو په دغه ځای بولي دوی هلاک (خپل) مه غواړئ مه بولئ تاسې نن ورځ هلاک يو او وبولئ تاسې هلاکونه ډير (ځکه چې عذاب مو ډير اقسام لري) .

همدارنګه کفار به ډير سوالونه وکوي چې مونږ لدې ځای نه يو ځل وباسئ بيا به داسې نه کوو مونږ به هغه عملونه وکوو چې مونږ نه کول او داکوم مو چې کول بيا به دې ته نيږدې هم ورنشو لکن دوی ته به وويل شي چې نه دا خبرې اوس بې ځايه دي تاسې ته نذير درغلی وو چې تاسې يې لدې ورځې نه ډارولی اوس هېڅ هم نشي کېدلی تاسې به د هغه خبره منلې وه اوس به پدې حالت کې نه وئ الله فرمايي :

وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ فِيهَا رَبَّنَا أَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُم مَّا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَن تَذَكَّرَ وَجَاءكُمُ النَّذِيرُ فَذُوقُوا فَمَا لِلظَّالِمِينَ مِن نَّصِيرٍ (37). 1

---

[1] **سورة الفرقان**

ترجمة : او دوی به نارې سورې وهي په دغه دوزخ کې (او داسې به وائي) اې ربه زمونږ (یو کرت) را وباسه مونږ (بېرته دنیا ته څو هلته) عمل وکړو صالح نېک غیر له هغه چې وو مونږ چې کاوه به مو (پخوا له دې بد عمل) آیا نه وو درکړی مونږ تاسې ته عمر دومره (موده) چې پند اخلي په هغه کې هر هغه څوک چې پند اخیستل غواړي او راغلي وو تاسې ته وېرونکي (چې د هغو خبره مو نه منله) پس و څکئ (عذاب) پس نشته ظالمانو (کافرانو) ته هېڅوک مددګار (چې له عذابه ئې خلاص کړي) .

قَالُوا رَبَّنَا أَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَأَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوبِنَا فَهَلْ إِلَى خُرُوجٍ مِّن سَبِيلٍ (۱۱) . [2]

ترجمة: (نو) وبه وایي (دا کفار) اې ربه زمونږ مړه دې کړو مونږ دوه ځلې او ژوندي دې کړو مونږ دوه ځلې پس قائل شو مونږ په ګناهونو خپلو پس آیا شته د وتلو (زمونږ ته له دغه دوزخه) کومه لاره !

په دنیا کې خو کفار ځان ته ډېر هوښیار وایي خو په آخرت کې به دوی پدې باندې هم اعتراف وکوي چې دوی نه پوهېدل ، کم عقل وو ، ګمراهان وو او که دوی پوهېدلی دوی به داسې نه وو الله فرمایي :

وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ (10). [3]

ترجمة : او وبه وایي (منکران) که چېرې وي مونږ آورېدلی مو (خبرې د انبیاوو په دنیا کې په سماع القبول سره) یا مو عقل لرلی (چې په

---

1 سورة فاطر
2 سورة الغافر (المؤمن)
3 سورة الملک

خیر او شر خپل ) نو نه به وو مونږ (نن) په اهل ملګرو د دوزخ کې.

په خپله نا پوهي د اعتراف سره سره به سوال وکوي چې لدې ځای نه د وویستل شي لکن د دوی دا غوښتنه به ډېره په بده توګه رد کړل شي الله به ورته ووايي چې بس نورې خبرې مه کوئ همدلته پکې ذليل اوسېږئ الله فرمايي :

قَالُوا رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَالِّينَ (106) رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْهَا فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا ظَالِمُونَ (107) قَالَ اخْسَؤُوا فِيهَا وَلَا تُكَلِّمُونِ (108) إِنَّهُ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِي يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَأَنتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ (109)

فَاتَّخَذْتُمُوهُمْ سِخْرِيًّا حَتَّى أَنسَوْكُمْ ذِكْرِي وَكُنتُم مِّنْهُمْ تَضْحَكُونَ (110). [1]

ترجمة : نو وبه وايي (کفار) اې ربه زمونږ غالبه شوې وه پر مونږ بد بختي زمونږ او وو مونږ يو قوم ګمراهان (چې لياره د حق شيطان راڅخه ورکه کړې وه) اې ربه زمونږ (يو کرت) وباسه مونږ له دې دوزخه پس که بيا را وګرځېدو مونږ (دې کفر ته) پس بېشکه مونږ ظالمان يو( پر ځانونو خپلو باندې) و به فرمايي چې تاسې چُپ شئ (پراته اوسئ خوار ذليل) په دې دوزخ کې او مه غږيږئ له ما سره (په دفع د عذاب کې) بېشکه شان دا دی چې وه يوه ډله له بندګانو زما (يعني مؤمنان) چې ويل دوی (تضرعاً) اې ربه زمونږ ه پوره يقين او تصديق مو کړی دی (په ټولو مؤمن به شيانو باندې) نو مغفرت وکړه مونږ ته (ګناه زمونږ) او مهرباني را باندې وکړه او ته (اې پروردګاره) خير ډېر غوره د ټولو مهرباني کوونکيو ئې پس نيولی وو تاسې دوی مسخرې کړل شوي پر دوی تر هغه پورې چې هېر کړ (مسلمانانو) له تاسې څخه اې کفارو ذکر ياد زما (په سبب د مشغولتيا د تاسې اې کفارو په

[1] سورة المؤمنون

مسخرو د مسلمانانو کې او وئ تاسې چې په هغوی پورې مو خندل (هر وخت له ډېره کبره) .

بس په دوی باندې اوس د الله فيصله شوېده اوس هېڅ شی هم نه کيږي په دوی باندې فيصله شوېده چې دوی به دوزخ ته ځي او پدې وخت کې به دوی ډېر په بد حالت کې وي الله فرمايي :

وَلَوْ تَرَى إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُو رُؤُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ رَبَّنَا أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ (12) وَلَوْ شِئْنَا لَآتَيْنَا كُلَّ نَفْسٍ هُدَاهَا وَلَكِنْ حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّي لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ (13) فَذُوقُوا بِمَا نَسِيتُمْ لِقَاء يَوْمِكُمْ هَذَا إِنَّا نَسِينَاكُمْ وَذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (14). [1]

ترجمة : او كه ووينې ته (اې محمده ﷺ!) كله چې دغه كافران ښكته اچوونكي به وي د سرونو خپلو په نزد د رب خپل (په ورځ د قيامت كې له ذلت ندامت او خجالت نه او وائي به) اې ربه زمونږ وليده مونږ او واورېده مونږ (وعده ستا او تصديق د رسولانو) پس بېرته بوزه مونږ (دنيا ته له پاره د دې) چې وكړو ښه عمل بېشكه چې مونږ يقين كوونكي يو (نو وبه گورې ته يو سخت بد كار او دغه وينا به دوی ته له سره څه گټه نه رسوي) او كه اراده كړې وی مونږ نو خامخا وركړی به وو مونږ هر نفس ته (په دنيا كې) هدايت د هغه وليكن مقرره شوې ده دغه وينا له ما چې خامخا ډک به كړم دوزخ له پېريانو او انسانانو ټولو څخه پس و څكئ تاسې (دا عذاب) په سبب د دې چې هېر كړی وو تاسې ملاقات د ورځې ستاسې چې دا دی بېشكه چې مونږ به هم هېر كړو تاسې او وڅكئ تاسې عذاب دائمي په سبب د هغه (كفر او تكذيب) چې وئ تاسې چې كاوه به مو (په دنيا كې) .

---

[1] سورة السجدة

چې د الله له درباره نا امیده شي هېڅ لاره به نه وینې چې څه وکوي بله به هېڅ لاره پیدا نه کړي د دوزخ فرښتو ته به راشي هغوی ته به وایي چې تاسې زمونږ لپاره شفاعت وکوئ چې دا عذاب د له مونږ نه سپک شي د دوی به دا تمه وي چې کېدای شي دوی به څه وکوي لکن دوی به هم ورته همدا وایي چې تاسې ته پیغمبران درغلي وو تاسې د هغوی خبرې ولې نه منلې؟ الله فرمایي :

**وَقَالَ الَّذِينَ فِي النَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ادْعُوا رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ الْعَذَابِ (49) قَالُوا أَوَلَمْ تَكُ تَأْتِيكُمْ رُسُلُكُم بِالْبَيِّنَاتِ قَالُوا بَلَى قَالُوا فَادْعُوا وَمَا دُعَاء الْكَافِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَالٍ (50).** [1]

ترجمة : او وبه وایي هغه کسان (چې پراته دي) په اور کې خزانچیانو متصرفانو د دوزخ ته چې دعاء وکړئ (زمونږ د پاره) رب خپل ته چې سپک کړي له مونږه یوه ورځ له عذابه (چې لږ څه په ارام شو) وبه وایي (متصرفان د دوزخ دوزخیانو ته) آیا نه وو راغلي تاسې ته رسولان ستاسې په دلائلو ښکاره وو (د قدرت) وایي (ولي نه وو راغلي) بلکه راغلي وو نو وبه وایي (متصرفان د دوزخ) پس وبولئ تاسې (پخپله الله ) او نه ده دعاء د کافرانو مګر په ګمراهي کې (چې هېڅ فایده ورته نه رسوي) .

چې لدې هم نا امیده شي نو بیا به د دوزخ د واکدارې فرښتې مالک نه وغواړي چې د الله په در بار کې دې د دوی لپاره شفاعت وکوي چې الله د دوی ټول هلاک کړي لکن دا تمنا یې هم نه منله کیږي دنیا خو بیا هم ښه ده که په چا باندې سخت تکلیف راشي نو د تکلیف په آخر کې خو مرګ ورته راځي هلته دا هم نشته نو ځکه مرګ هم یو

---

[1] سورة الغافر

نعمت دی هلته به یې خلک غواړي خو نه به راځي الله فرمايي :

وَنَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ قَالَ إِنَّكُم مَّاكِثُونَ (77) .[1]

ترجمة : او غږ به وکړي (دوزخیان) چې اې مالکه (خازنه د دوزخ) حکم دې وکړي پر مونږ رب ستا (د مرګ) وبه وايي (ملک خازن پس له زرو کلوپه ځواب د دوی) چې بېشکه (ژوندي) پاتې کېدونکي یئ (په دوزخ کې)

پدې سره د دوی د ټولو غوښتنو ځواب وویل شو چې نه به مو عذاب سپک شي او نه به لدې ځایه درته د وتلو څه لاره برابره شي او نه لدې ځای نه وتل شته همدلته به ستاسې ژوند وي الله فرمايي :

اصْلَوْهَا فَاصْبِرُوا أَوْ لَا تَصْبِرُوا سَوَاء عَلَيْكُمْ إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (16)[2] .

ترجمة : ځئ ننوځئ په دغه دوزخ کې پس صبر وکړئ تاسې یا مه کوئ صبر برابر دي (دغه دواړه کارونه) په تاسې باندې بېشکه هم دا خبره ده چې جزا درکوله شي تاسې ته د هغو (کارونو) چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې) .

پدې وخت کې به دوی ته د ژړا نه بغیر بله هېڅ لاره پاتې نشي نو پداسې توګه به وژاړي لکه مخکې تېر شول چې اوښکې به یې ختمې شي بیا به د اوښکو په ځای ورڅخه وینې ځي او وینې به ختمې شي بیا به ورڅخه زوې ځي په یو حدیث کې رسول الله ﷺ فرمايي چې دوزخیان به ډېر زیات ژاړي او که د دوی په اوښکو کې کښتۍ پرېښودل شي پکې وبه چلیږي او دوی به د اوښکو په ځای

[1] سورة الزخرف
[2] سورة الطور

په وينو سره ژاړي يعني له سترګو به يې وينې راځي او دوى به پدې کې چيغې او رمباړې وهي او هېڅ فايده به نه کوي په زوره زوره اوازونه به وباسي الله فرمايي :

فَأَمَّا الَّذِينَ شَقُواْ فَفِي النَّارِ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ (106) خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالأَرْضُ إِلاَّ مَا شَاء رَبُّكَ إِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ (107) . [1]

ترجمة : نو هر څه هغه کسان چې بد بختان شوي دي نو په اور کې به وي. وي به هغوى ته په هغه اور کې لوړ سخت غږ او ټيټ نرم غږ (لکه د خرو) همېشه به وي دوى په دغه اور کې څو چې وي آسمانونه او زمکه مګر چې اراده وفرمايي رب ستا (چې بوزي له سعيره زمهرير ته) بېشکه رب ستا کوونکى دى (په کمال د قدرت سره) هر هغه کار چې اراده وفرمايي (له اقسامه د تعذيب).

## له دوزخ نه د خلاصون لاره

وروسته لدې چې يو انسان دا پورتنۍ خبرې د زړه په سترګو وګوري او په زړه سره يې ولولي داسې څوک به وي چې هغه به دا نه غواړي چې له دوزخ نه د خلاص شي؟ داسې څوک به هم وي چې دوزخ ته به يې ورتلل وغواړي؟ هېڅوک هم نه غواړي چې دوزخ ته د لاړ شي خو شيطان له انسان سره وي او هغه يې بدو کارونو ته هڅوي داسې کارونه هم شته چې د هغه کارونو کول ددې سبب کيږي چې انسان له دوزخ نه نجات ومومي د مثال په ډول :

☜ د الله په دربار کې ژړل
☜ د الله په دربار کې ژړا ګانې کول او د هغه نه وېره .

---

[1] سورة هود

☜ له هغه عملونو څخه ځان ساتل چې انسان دوزخ ته بیایي لړ وروسته یې تفصیل را روان دی .
☜ له اور نه په الله باندې پناه غوښتل رسول الله ﷺ به اکثر په خپلو دعا ګانو کې له اور نه پناه غوښته هم په مانځه کې او هم بغیر د مانځه نه .

رسول الله ﷺ به اکثر دا دعا لوسته **ربنا آتنا في الدنيا حسنة وفي الآخرة حسنة وقنا عذاب النار** (اې زمونږ ربه راکړه مونږ ته په دنیا کې ښېګڼه او په آخرت کې ښېګڼه او مونږ د اور له عذابه وساته)

☜ له اور نه او له الله نه زیاته وېره کول او زمونږ په اسلام کې چې څومره مخکې تللي او محترم خلک دي هغوی له الله او له اور نه زیات ډارېدل او هر وخت به ورته دا خبره په یاد وه چې دوی باید داسې څه وکوي چې له اور نه وربانډې خلاص شي او دا چې څوک له اور نه ډارېږي ددې ډار مختلفې مرتبې دي کمه مرتبه یې داده چې انسان له اور نه پدې اندازه وډارېږي چې ټول په اسلام کې لازم کارونه او اعمال وکوي او له هغه څه نه ځان وساتي چې په اسلام کې ممنوع دي په پخوانیو علماوو کې به ځینې پداسې توګه ډارېدل چې په دنیا کې به یې اور ولیدو نو وبه رېږدېدو او ذهن ته به یې د دوزخ اور ورغلو ، ځینې به داسې وو چې د دوزخ تصور به خوب ته نه پرېښودو ځکه خو یو عالم فرمایي : زه حیران یم داسې کس ته چې جنت غواړي او خوب کوي زه حیران یم هغه کس ته چې له اوره د ځان خلاصول غواړي او بیا هم ویده کیږي ځینې به داسې نېکان هم وو چې د دوزخ وېرې به له خندا نه د ټول عمر لپاره منع کړی وو او کله به یې هم نه خندل حضرت سعید بن جبیر به فرمایل : **كيف أضحك وجهنم قد سعرت،**

والأغلال قد نصبت، والزبانية قد أعدت (زه څنګه وخاندم پداسې حال کې چې دوزخ ګرم کړل شوی دی ، هتکړی او ځنځيرونه تيار کړل شوي دي او د غضب فرښتې تيارې دي) ځينې به داسې نېکان وو چې د دوزخ خبرې به ورته وشوې هغه به بيمار شو رسول الله ﷺ فرمايي : لو تعلمون ما أعلم، لضحكتم قليلا، ولبكيتم كثيرا (که تاسې په ټولو هغه څه پوهېدلی چې زه وربانديې پوهېږم نو تاسې به خندل لږ او ژړل به مو ډېر)

☜ په دعا کې نېک عملونه الله ته وړاندې کول .

دا هم له دوزخ نه د خلاصون يوه لاره ده او رښتيني مؤمنان همداسې کوي قرآن کريم هم مونږ ته دا طريقه را ښيي او رسول الله ﷺ هم په مختلفو احاديثو کې مونږ ته را ښودلي چې دعا ګانې کوئ او په خپلو نېکو عملونو سره د عاګانې کوئ الله فرمايي :

قُلْ أَؤُنَبِّئُكُم بِخَيْرٍ مِّن ذَلِكُمْ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَأَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللّهِ وَاللّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ (15) الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا إِنَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ (16) .[1]

ترجمة : ووايه ( اې محمده ﷺ! دوی ته) آيا خبر درکړم تاسې ته په بهتر (څيز) له دغو (٦ واړو دنيوي خوندونو) نه؟ (شته) د پاره د هغو کسانو چې متقيان دي (د الله احکام عملي کوي) په نزد د رب د دوی جنتونه چې بهيږي لاندې له (مانيو او ونو د) هغوی ويالې چې تل به وي (دوی) په دې (جنتونو) کې او ښځې به وي ښې پاکې او رضا مندي (لويه به وي له کريمه ربه دوی ته) له جانبه د الله او الله ښه ليدونکی دی (عالم په پټو او ښکاره احوالو) د بندګانو

[1] سورة آل عمران

(نو هرچا ته به د خپل عمل جزا ورکړي) هغه کسان چې وايي اې زمونږ ربه مونږ ايمان راوړی دی زمونږ ګناهونه مونږ ته وبښه او د اور له عذابه مو وساته.

په بل ځای کې الله فرمايي : الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىَ جُنُوبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَذا بَاطِلاً سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ (191) رَبَّنَا إِنَّكَ مَن تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ (192) رَّبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِي لِلإِيمَانِ أَنْ آمِنُواْ بِرَبِّكُمْ فَآمَنَّا رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّئَاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الأبْرَارِ (193)رَبَّنَا وَآتِنَا مَا وَعَدتَّنَا عَلَى رُسُلِكَ وَلاَ تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّكَ لاَ تُخْلِفُ الْمِيعَادَ (194). [1]

ترجمة : (عاقلان) هغه کسان دي چې يادوي الله په ولاړه او په ناسته او په اړخونو خپلو (چې پراته وي) او فکر کوي دوی په پيدائښت د آسمانونو او زمکې (او د مافيها)کې (نو وائي) اې ربه زمونږه! نه دي پيدا کړي تا دا مخلوقات عبث (بې حکمته) نسبت د پاکي دي تاته (له ټولو عيبونو) نو وساته مونږ له عذابه د اور (د دوزخ) اې ربه زمونږه! بېشکه ته هرڅوک چې داخل کړې اور (د دوزخ) ته نو په تحقيق رسوا کړ تا هغه (اې ربه!) او نشته ظالمانو (کافرانو) ته هېڅ مددګاران (د عذاب په دفعه کې) اې زمونږ ربه! بېشکه مونږ واورېده (اواز) د يو اواز کوونکي (چې قرآن يا محمدﷺ) دی بلل ئې (خلق) ايمان ته (داسې) چې ايمان راوړئ) په رب خپل نو ايمان راؤړ مونږ (په رب خپل) اې ربه زمونږه! نو مغفرت وکړه مونږ ته ګناهونه (لوی) زمونږ! او لرې کړه له مونږه ګناهونه (واړه) زمونږ! او وفات کړه مونږ (په داسې حال کې چې داخل اوسو) سره له ډلې د نيکانو اې ربه زمونږه او راکړه مونږ لره هغه چې وعده کړې ده تا له مونږ سره په (ژبو د) رسولانو خپلو او مه

[1] سورة آل عمران

رسوا كوه مونږ په ورځې د قيامت كې بېشكه ته (اې ربه) نه كوې مخالفت له وعدې (خپلې) نه.

☜ د الله سره مينه كول

هغه كسان چې له الله سره مينه كوي هغه به هم اور ته نه ځي حضرت انس بن مالک فرمايي رسول اله ﷺ فرمايل والله لا يلقي الله حبيبه في النار .[1]

☜ روژې نيول

روژه له هغه عبادتونو څخه ده چې د انسان او د اور په مينځ كې سپر جوړيږي حضرت جابر بن عبد الله فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل قال الله تعالى: الصيام جنة يستجن بها من النار. مسند امام احمد بن حنبل (ترجمة : روژه يو سپر دى چې له اور نه وربانديې ځان ساتل كيږي) .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : من صام يوماً في سبيل الله بعَّد الله وجهه عن النار سبعين خريفاً .[2]

ترجمة : چا چې يوه ورځ د الله په لاره كې روژه ونيوله الله به د هغه مخ له دوزخ نه د اويا كلونو په اندازه باندې له اور نه لرې كړي .

☜ له الله نه ويره

هغه كسان چې له الله نه ډاريږي هغه به كله هم دوزخ ته نه ځي الله فرمايي : وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ .[3]

---

1 مسند امام احمد بن حنبل
2 صحيح البخاري
3 سورة الرحمن آية ٤٦

ترجمة : او هغه لره چې ویریږي (په وخت د ګناه کې) له دریدلو څخه په وړاندې د رب خپل کې (حساب ته) دوه جنتونه دي.

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **لا یلج النار رجل بکی من خشیة الله حتی یعود اللبن في الضرع .... الحدیث .** [1]

ترجمة : چا چې د الله له ویرې وژړل هغه به اور ته نه ځي تردې چې شودې بېرته په غولانځ کې ننوزي (یعني بالکل به نه ځي).

☜ د الله په لاره کې جهاد کول

د الله په لاره کې جهاد کول هم له هغه غوره او ډېرو کامیابو کارونه دي چې څوک یې وکوي هغه به دوزخ ته نه ځي او پدې اړه روایات ډېر زیات دي د پورتني حدیث پاتې برخه کې هم رسول الله ﷺ فرمایي : ، **ولا یجتمع غبار في سبیل الله ودخان جهنم** (په یو انسان باندې د الله د لارې ګرد او د دوزخ لوګی دواړه نه جمع کیږي یعني په چا باندې چې په دنیا کې د الله د لارې ګرد پریوزي هغه به دوزخ ته نه ځي چې د هغه لوګی همورباندې پریوزي)

په بل حدیث کې رسول الله ﷺ فرمایي : **ما اغبرت قدما عبد في سبیل الله، فتمسه النار .** [2](د کوم بنده چې پښې د الله په لاره کې ګردجنې شي هغه اور نه مسه کوي) .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **لا یجتمع کافر وقاتله في النار أبداً .** [3]

---

1 **سنن الترمذي**
2 **صحیح مسلم**
3 **صحیح مسلم**

ترجمة : کله هم داسې نه کيږي چې څوک يو کافر د الله د رضا لپاره مړ کړي بيا دا قاتل او هغه کافر په دوزخ کې سره جمع شي .

☜ له اوره پناه غوښتل

هغه کسان چې له دوزخ نه پناه غواړي او له الله نه غواړي چې له اور نه يې وساتي هغه کسان به هم دوزخ ته نه ورځي او الله به يې ساتي الله په قرآن کريم کې د ښو بندګانو صفت کوي او فرمايي : وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا (65) . [1]

ترجمة : او(بندګان د رحمن ) هغه کسان دي کله (چې سره له طاعته خضوعاً) وائي اې ربه زمونږه وګرځوه له مونږ څخه عذاب د دوزخ بېشکه عذاب د دغه (دوزخ) دی (عذاب) لا زم همېشه .

حضرت انس فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **ما سأل أحد الله الجنة ثلاثاً، إلا قالت الجنة: اللهم أدخله الجنة، ولا استجار رجل مسلم الله من النار ثلاثاً، إلا قالت النار: اللهم أجره مني .** [2]

ترجمة : کله چې څوک له الله نه د جنت سوال درې ځله وکوي جنت وايي ای الله ماته يې راوله او کله چې يو مؤمن له الله نه درې ځله وغواړي چې دی له دوزخ څخه وساتي دوزخ الله ته وايي اې الله دی لما څخه وساته .

---

[1] **سورة الفرقان**

[2] **رواه الحاكم في المستدرک**

# کافر

هغه کسان چې کافران دي هغوی به دوزخ ته ځي او ددوی په اړه خو فیصله شویده چې د دوی ځای دوزخ دی دوی که په دنیا کې هرڅه نېک عملونه وکوي او یا خیراتونه وکوي او یا بشر دوستي وکوي او یا انسان پالنه وکوي ، یا د مظلومانو سره مرسته وکوي په هر صورت به دوی دوزخ ته ځي او په قرآن کریم کې په ډېرو زیاتو ځایونو کې تقریباً په ۷۷ ځایونو کې د دوی په اړه حکم صادر شوی دی چې دوی به دوزخ ته ځي الله فرمایي :

وَالَّذِينَ كَفَرواْ وَكَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا أُولَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (39). 1

ترجمة: او هغه کسان چې کافران شوي دي او دروغ ګڼي آیاتونه زمونږ هم دغه کسان صاحبان د اور (د دوزخ) دي هم دوی به په هغه (اور د دوزخ) کې همېشه وي .

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ أُولَئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلاَئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ (161) خَالِدِينَ فِيهَا لاَ يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلاَ هُمْ يُنظَرُونَ (162) . 2

ترجمة :بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي او مړه شوي دي حال دا چې دوی کافران وو (په وخت د مرګ کې) دغه کسان (چې دی) پر دوی باندې لعنت د الله او د ملائکو او د خلقو ټولو (یعني د ټولو هغو مخلوقاتو چې لعنت ته ئې اهمیت ورکاوه شي) حال دا چې همېشه به وي دوی په لعنت (یا اور) کې نه به سپکاوه شي له دوی څخه عذاب او نه به دوی ته مهلت ورکړل شي (د توبې یا به په رحمت سره ورته نه کتل کیږي) .

---

1 سورة البقرة
2 سورة البقرة

اللّهُ وَلِيُّ الَّذِينَ آمَنُواْ يُخْرِجُهُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّوُرِ وَالَّذِينَ كَفَرُواْ أَوْلِيَآؤُهُمُ الطَّاغُوتُ يُخْرِجُونَهُم مِّنَ النُّورِ إِلَى الظُّلُمَاتِ أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (257). [1]

ترجمة :الله دوست (مرستيال -مددګار) دی د هغو کسانو چې مؤمنان دي چې باسي دوی له تيارو (دکفر او ګمراهي نه) د رڼا (د ايمان او هدايت) لوري ته او هغه کسان چې کافران (منکران) شوي دي دوستان د دوی شيطانان دي چې باسي دوی له رڼا (د فطرت ايمان او هدايت نه) د تيارو (د کفر او ګمراهي) لوري ته دغه کسان (چې فطري ايمان ئې په عملي کفر سره بدل کړی دی صاحبان د اور (د دوزخ) دي هم دوی په دې اور کې تل پاتې کېدونکي دي.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ لَن تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلاَ أَوْلاَدُهُم مِّنَ اللّهِ شَيْئًا وَأُولَئِكَ هُمْ وَقُودُ النَّارِ (10)كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ كَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا فَأَخَذَهُمُ اللّهُ بِذُنُوبِهِمْ وَاللّهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ (11)قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُواْ سَتُغْلَبُونَ وَتُحْشَرُونَ إِلَى جَهَنَّمَ وَبِئْسَ الْمِهَادُ (12) . [2]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي له سره به دفعه نه کړي له دوی ځنې مالونه د دوی او نه اولاد د دوی له (عذابه د) الله نه هېڅ شی (نه لږ نه ډېر نه په دنيا او نه په عقبی کې) او دا کسان هم دوی دي خس د اور (د دوزخ) (حال د دوی داسې دی) لکه ((عادت)) د تابعانو د فرعون او ((لکه حال عادت)) د هغو کسانو چې پخوا له دوی ځنې وو (لکه عاديان او ثموديان) چې نسبت د دروغو به يې کاوه آيتونو زمونږ ته پس ونيول دوی لره الله (په هلاکوونکي عذاب سره) په سبب د ګناهونو د دوی او الله سخت دی عذاب (دده يعني په کافرانو ئې عذاب سخت او عقاب ئې

1 سورة البقرة
2 سورة آل عمران

تل دی) وو ایه ( اي محمده ﷺ!) هغو کسانو ته چې کافران شوي دي ژر به مغلوب کړل شئ تاسې (په وژلو یا شړلو سره په دنیا کې) او جمع به کړل شئ تاسې (شړل به شئ په عقبی کې) طرف د دوزخ ته او بد ځای د هستوګنې دی (دغه دوزخ) .

إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَيَقْتُلُونَ الِّذِينَ يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (21) أُولَئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ (22).1

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران کیږي پر آیاتونو (احکامو) د الله باندې او وژني دوی انبیاء په ناحقه سره (پخپل اعتقاد کې هم) او وژني هغه کسان چې حکم کوي هغوی په عدل (او انصاف) سره له خلقو څخه پس زیری ورکړه دوی ته په عذاب دردناک سره دا همغه کسان دي چې باطل شوي دي عملونه د دوی په دنیا کې او په آخرت کې او نشته دوی ته هیڅ مددګاران.

فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُواْ فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ (56) . 2

ترجمة : نو هرڅه هغه کسان چې کافران شوي دي نو زه به په عذاب کړم دوی په عذاب سخت سره په دنیا او په آخرت کې او نه به وي دوی ته هیڅ مدد کوونکی (د عذاب په دفع کې) .

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ وَمَاتُواْ وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَن يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ الأرْضِ ذَهَبًا وَلَوِ افْتَدَى بِهِ أُوْلَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ (91).3

ترجمة :بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي او مړه شوي دي حال دا چې دوی کافران دي نو له

---

1 سورة آل عمران
2 سورة آل عمران
3 سورة آل عمران

سره به قبول نشي له يوه د دوى څخه په ډک والي د زمکې سره زر او اګر که فديه ورکړي دوى په دغه (ټولو زرو) سره ، دغه کسان (چې په کفر مړه دي) شته دوى لره عذاب دردناک او نشته دوى لره هيڅ مددګاران (چې مرسته ورسره وکړي) .

يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكْفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ فَذُوقُواْ الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ (106). [1]

ترجمة : په هغه ورځ چې سپين به شي (ځينې) مخونه (د مؤمنانو) او تور به شي (ځينې) مخونه (د کافرانو) پس هرڅه هغه کسان چې تور شوي دي مخونه د دوى (نو وبه ويل شي دوى ته) آيا کافران شوي يئ تاسې وروسته له ايمان راوړلو ستاسې؟ نو و څکئ عذاب په سبب د دې چې وئ تاسې چې کافران کېدلئ .

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ لَن تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلاَ أَوْلاَدُهُم مِّنَ اللّهِ شَيْئًا وَأُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (116). [2]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي له سره به دفعه نه کړي له دوى ځنې مالونه د دوى او نه اولاد د دوى له (عذابه) د الله هيڅ شى! او دغه کسان صاحبان د اور (د دوزخ دي) دوى به په هغه (اور) کې تل وي (بې انتهاء ، بې انقطاع) .

وَاتَّقُواْ النَّارَ الَّتِي أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ (131). [3]

ترجمة : او ووېرېږئ ! له اوره هغه چې تيار کړل شوى دى له پاره د کافرانو.

---

1 سورة آل عمران
2 سورة آل عمران
3 سورة آل عمران

إِنَّ الَّذِينَ اشْتَرَوُاْ الْكُفْرَ بِالإِيمَانِ لَن يَضُرُّواْ اللّهَ شَيْئًا وَلهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (177) وَلاَ يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ أَنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ خَيْرٌ لِّأَنفُسِهِمْ إِنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ لِيَزْدَادُواْ إِثْمًا وَلَهْمُ عَذَابٌ مُّهِينٌ (178). 1

ترجمة : بېشکه هغو کسانو چې پيرودلي ئې دی (بدل کړی ئې دی) کفر په ايمان سره له سره به ضرر نه رسوي دوی الله ته هېڅ شی او (مقرر دی) دوی ته عذاب دردناک ( د دوزخ) او نه دې گمان کوي هغه کسان چې کافران شوي دي چې بېشکه دا چې مهلت ورکوو مونږ دوی ته خير (غوره) دی له پاره د ځانونو د دوی (داسې نه ده بلکه) بېشکه دا خبره ده چې تل مهلت ورکوو مونږ دوی ته له پاره د دې چې زياته کړي دوی گناه او (مقرر) دی دوی ته عذاب سپکوونکی.

لاَ يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِينَ كَفَرُواْ فِي الْبِلاَدِ (196)مَتَاعٌ قَلِيلٌ ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ (197) .[2]

ترجمة : نه دې تېر باسي له سره تا (اې سامعه!) تلل را تلل د هغو کسانو چې کافران شوي دي (او تصرف د دوی) په ښارونو کې (دا) فائده ده لږه پس (له مرگه) ځای د دوی دوزخ دی او بد ځای د هستوگنې دی (دا دوزخ).

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ بِآيَاتِنَا سَوْفَ نُصْلِيهِمْ نَارًا كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ بَدَّلْنَاهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا لِيَذُوقُواْ الْعَذَابَ إِنَّ اللّهَ كَانَ عَزِيزًا حَكِيمًا (56).3

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران (منکران) شوي دي په آيتونو زمونږ ژر به ننباسو مونږ دوی اور ته (چې پکې سوزول کيږي) هر کله چې پاخه شي (وسوزيږي) پوستکي د دوی (په اورکې نو) بدلوو مونږ دوی ته پوستکي غير له هغو له

---

1 سورة آل عمران
2 سورة آل عمران
3 سورة النساء

پاره د دې چې و څکي دوى (تل تر تله نوى نوى) عذاب بېشکه چې الله دى ښه غالب قوي (د احکامو په انفاذ) لوى حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي) .

إِنَّ اللّهَ أَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا (102) . [1]

ترجمة : بېشکه الله تيار کړى دى د پاره د کافرانو عذاب سپکوونکى.

وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ آيَاتِ اللّهِ يُكَفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلاَ تَقْعُدُواْ مَعَهُمْ حَتَّى يَخُوضُواْ فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ إِنَّكُمْ إِذًا مِّثْلُهُمْ إِنَّ اللّهَ جَامِعُ الْمُنَافِقِينَ وَالْكَافِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا (140). [2]

ترجمة : او په تحقيق (پخوا) نازل کړى دى (الله ) پر تاسې په کتاب (قرآن) کې دا حکم هرکله چې واورېدل تاسې آياتونه د الله چې کفر (او انکار) کولى شي په دې آيتونو او مسخرې کولى شي په هغو پورې نو مه کينئ تاسې له دوى سره (اى مؤمنانو!) تر هغه پورې چې مشغول شي دوى په خبره بله کې (که نه) په تحقيق تاسې به (هم) په دې وخت کې د هغو په شان شئ! (په ګناه کې) بېشکه چې الله يو ځاى کوونکى دى د منافقانو او د کافرانو په دوزخ کې (دوزخ) کې د ټولو په يو ځاى کې) .

إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللّهِ وَرُسُلِهِ وَيُرِيدُونَ أَن يُفَرِّقُواْ بَيْنَ اللّهِ وَرُسُلِهِ وَيقُولُونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَنَكْفُرُ بِبَعْضٍ وَيُرِيدُونَ أَن يَتَّخِذُواْ بَيْنَ ذَلِكَ سَبِيلاً (150)أُوْلَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ حَقًّا وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا (151). [3]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران (منکران) کيږي پر الله او پر رسولانو د الله او اراده لري

[1] سورة النساء
[2] سورة النساء
[3] سورة النساء

(غواړي) دوى چې تفريق (بېلتون) وکړي په مينځ د الله او رسولانو د الله او وايي دوى چې مونږ ايمان راوړو پر ځينو او کافران (منکران) کيږو پر ځينو (نورو رسولانو) او اراده لري (غواړي) دوى چې ونيسي په مينځ د دې (کفر او اسلام کې) يوه لاره دغه (تفريق کوونکي) هم دوى کافران دي (په کمال د کفر او) په حقه سره او تيار کړى دى مونږ له پاره د کافرانو عذاب ډېر سپکوونکى (د دوزخ)

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ وَظَلَمُواْ لَمْ يَكُنِ اللّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلاَ لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيقاً (168) إِلاَّ طَرِيقَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا وَكَانَ ذَلِكَ عَلَى اللّهِ يَسِيرًا (169). 1

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي او ظلم ئې کړى دى (په پټولو د نعمت د محمدﷺ يا په منعه د مؤمنانو له ايمانه) نه دى الله چې مغفرت وکړي دوى ته او نه چې وښيي دوى ته سمه صافه لاره (څو چې دوى کافران دي) مګر (وبه ښيي دوى ته) لاره د دوزخ چې همېشه به وي دوى په هغه کې تل تر تله (بې انتها او بې انقطاع) او دي دغه (ننه ايستل او همېشه پرېښودل په اور کې) پر الله باندې ډېر اسان.

وَالَّذِينَ كَفَرُواْ وَكَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ (10). 2

ترجمة: او هغه کسان چې کافران شوي دي او نسبت د دروغو ئې کړى دى آياتونو زمونږ ته هم دغه کسان دي صاحبان (ملګري د اور) د دوزخ.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِي الأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لِيَفْتَدُواْ بِهِ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (36)يُرِيدُونَ أَن يَخْرُجُواْ مِنَ النَّارِ وَمَا هُم بِخَارِجِينَ مِنْهَا وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيمٌ (37). 1

---

1 سورة النساء
2 سورة المائدة

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي که وی دوی ته هغه (اقسام د اموالو) چې په زمکه کې دي ټول او په قدر د دې نور (هم) له دې سره شي د پاره د دې چې فديه ورکړي دوی په هغه سره له عذابه د ورځې د قيامت څخه نو قبوله به نه کړه شي (دا فديه) له دوی څخه او شته دوی ته عذاب ډېر دردناک اراده به کوي (غواړي به) دوی چې ووزي دوی له اوره (د دوزخ) حال دا چې نه به وي دوی وتونکي له هغه اوره او شته دوی ته عذاب دائم (بې انتهاء او بې انقطاع).

وَالَّذِينَ كَفَرُواْ وَكَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ (86). [2]

ترجمة: او هغه کسان چې کافران (منکران) شوي دي او نسبت د درواغو ئې کړی دی آيتونو زمونږ ته هم دغه کسان صاحبان د جحيم (ملګري د دوزخ) دي.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّواْ عَن سَبِيلِ اللّهِ فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ وَالَّذِينَ كَفَرُواْ إِلَى جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ (36)لِيَمِيزَ اللّهُ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ بَعْضَهُ عَلَىَ بَعْضٍ فَيَرْكُمَهُ جَمِيعاً فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ أُوْلَئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ (37). 3

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي نفقه کوي (لګوي) دوی مالونه خپل د پاره د دې چې منع کړي دوی (خلق) له لارې د الله څخه نو ژر به نور هم ولګوي دغه مالونه بيا به شي (دغه انفاق) پر دوی حسرت (پښېماني چې مال ئې ځي او مطلب يې پرې نه حاصلېږي) بيا به په آخرت کې مغلوب شي او هغه کسان چې کافران شوي دي (او په کفر کې مړه شي) دوزخ ته شړل (بيول) کيږي د پاره د دې چې بېل کړي الله خبيث (ناپاک کافر)

---

1 سورة المائدة
2 سورة المائدة
3 سورة الانفال

له طيب (پاک مؤمن) څخه او بيا کيږدي خبيث (نا پاک سره لاندې باندې) ځينې د دوی په ځينو نورو باندې نو را جمع به کړي دا (خبيثان) ټول نو وبه ئې غورځوي په دوزخ کې (دغه خبيثان يا مال لګوونکي) هم دوی زيانکاران دي.

وَلَوْ تَرَى إِذْ يَتَوَفَّى الَّذِينَ كَفَرُواْ الْمَلآئِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ وَذُوقُواْ عَذَابَ الْحَرِيقِ (50) .[1]

ترجمة : او که ووينې (اې محمده ﷺ!) هغه وخت چې قبض د روح کوي د هغو کسانو چې کافران شوي دي فرښتې (د ملک الموت مددګاران) په دې حال کې چې وهي به مخونه د دوی او شا ګانې د دوی او (وائي به ورته) و څکئ تاسې عذاب د (اور) سوزوونکی (نو وبه ګورې يو له شرمه ډک حال) .

وَعَدَ الله الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا هِيَ حَسْبُهُمْ وَلَعَنَهُمُ اللّهُ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيمٌ (68).[2]

ترجمة : وعده کړې ده الله له منافقانو سړيو سره او له منافقاتو ښځو سره او له (ټولو) کفارو سره اور د دوزخ تل به وي (دوی) په دغه (دوزخ) کې هم دغه دوزخ بس دی دوی ته (د عذاب او سزا له مخې) او لعنت کړی دی په دوی الله او مقرر دی دوی ته عذاب تل مدام (بر قرار پاتې کېدونکی) .

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ (73).[3]

---

1 سورة الانفال
2 سورة التوبة
3 سورة التوبة

ترجمة: اې نبي (محمده ﷺ!) جهاد كوه ته له كفارو سره (په توره) او له منافقانو سره (په حجت او اقامت د حدودو) او سختي كوه پر دوی او (آخري) ځای د ورتلو د دوی دوزخ دی او بد ځای د ورتلو دی (دا دوزخ)

إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا وَعْدَ اللّهِ حَقًّا إِنَّهُ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُواْ وَعَمِلُواْ الصَّالِحَاتِ بِالْقِسْطِ وَالَّذِينَ كَفَرُواْ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُواْ يَكْفُرُونَ (4). 1

ترجمة: خاص هم ده ته ورتله ستاسې دي د ټولو وعده كړې ده الله وعده حقه بېشكه دی اول پيدا كوي دا مخلوق بيا ژوندي كوي ئې (پس له مرګه) لپاره د دې چې جزا وركړي هغو كسانو ته چې ايمان ئې راوړی دی او كړي ئې دي ښه (عملونه) په عدل انصاف سره (چې ډېره وړه نيكي هم نه ضائع كوي) او هغه كسان چې كافران شوي دي شته دوی ته څښل له ايشېدليو اوبو او عذاب دی دردناک په سبب د دې چې وو د وی چې كافران كېدل.

اللّهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ وَوَيْلٌ لِّلْكَافِرِينَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيدٍ (2). 2

ترجمة: هغه الله چې خاص ده ته دي هر هغه چې په اسمانونو كې دي (له علوياتو) او هر هغه چې په زمكه كې دي (له سفلياتو سره د اسمانونو او د زمكو) او خرابي (عذاب، مصيبت او اور) دی د پاره د كفارو له عذابه سخته.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُواْ نِعْمَةَ اللّهِ كُفْرًا وَأَحَلُّواْ قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ (28)جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا وَبِئْسَ الْقَرَارُ (29) . 1

1 سورة يونس
2 سورة ابراهيم

ترجمة: آيا نه يې خبر نه کوري ته هغو کسانو (د کفارو) ته چې بدل کړی ئې دی نعمت د الله په ناشکري سره (په اختيار د کفر) او را ښکته کړی دی دوی قوم خپل په دار د هلاک کې چې دوزخ دی داخل به شي دوی په هغه اور کې او بد ځای د قرار او هستوګنځی دی (دا دوزخ).

ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُخْزِيهِمْ وَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَآئِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تُشَاقُّونَ فِيهِمْ قَالَ الَّذِينَ أُوتُواْ الْعِلْمَ إِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَالْسُّوءَ عَلَى الْكَافِرِينَ (27) الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلائِكَةُ ظَالِمِي أَنفُسِهِمْ فَأَلْقَوُاْ السَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِن سُوءٍ بَلَى إِنَّ اللّهَ عَلِيمٌ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (28)فَادْخُلُواْ أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ (29). [2]

ترجمة: بيا په ورځ د قيامت کې به (الله وشرموي) رسوا کړي دوی او وبه فرمائي (الله) چې چېرته دي شريکان زما (ستاسې په ګمان) هغه چې وئ تاسې چې مخالفت به مو کاوه (له انبياوو او مؤمنانو سره) په باب د دوی کې وبه وائي هغه کسان چې ورکړل شوی دی دوی ته عمل (يعني ملائک ، انبياء او علماء) چې بېشکه خواري د نن ورځې او بدي (يعني عذاب ئې پر کافرانو دی) هغه (کافران) چې قبضوي (ارواح د) دوی ملائکې په دې حال کې چې ظلم کوونکي دي دوی په نفسونو ځانونو خپلو (په کفر سره) نو وړاندې به کړي روغه (اطاعت او وبه وايي) نه وو مونږه چې عمل به مو کاوه د هيڅ قسم بدي (نو وبه فرمايي الله ولې مو نه کاوه دروغ مه وايئ) بلکه کاوه تاسې معصيت بېشکه چې الله ښه عالم دی په هغه څه چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنيا کې) (نو وبه ويلی شي دغو ظالمانو ته) چې ننوزي اوس تاسې په دروازو د دوزخ کې چې همېشه اوسئ په هغه کې نو خامخا بد ځای د هستوګنې د متکبرانو (دا دوزخ دی).

---

[1] سورة ابراهيم

[2] سورة النحل

الَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ اللّهِ زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُواْ يُفْسِدُونَ (88).[1]

ترجمة: هغه کسان چې پخپله کافران شوي دي او اړولي دي دوی (نور خلق هم په دنيا کې) له لياري د الله زيات به کړو مونږ دوی ته (په آخرت کې) يو عذاب د پاسه د بل په سبب د هغه چې وو دوی چې فساد به يې کاوه (چې کفر او منع ده د اسلامه).

ذَلِكَ بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّواْ الْحَيَاةَ الْدُّنْيَا عَلَى الآخِرَةِ وَأَنَّ اللّهَ لاَ يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ (107)أُولَئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللّهُ عَلَى قُلُوبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ وَأُولَئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ (108)لاَ جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الآخِرَةِ هُمُ الْخَاسِرونَ (109). 2

ترجمة: دا (لوی اخروي عذاب) په سبب د دې دی چې دوی غوره کړی دی ژوندون لږ خسيس پر (اعلی ژوندانه د) آخرت او بېشکه الله نه ښيي لياره (د استقامت) قوم کافرانو ته دا(کفار) همغه کسان دي چې مهر وهلی دی الله پر زړونو د دوی (چې نه قبلوي حق) او په غوږونو د دوی (چې نه اوري حق) او په سترګو د دوی (چې نه ويني آثار د قدرت) او دغه کسان (يعني کفار) هم دوی دي غافلان (له آخرت نه) دا خبره واقعي ده بې شبهې چې بېشکه دوی په آخرت کې هم دوی دي زيانکاران (چې عمر يې بې فايدې تېر شو).

وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ حَصِيرًا (8) .[3]

ترجمة : او ګرځولی دی مونږ دوزخ د پاره د کافرانو بنديخانه.

[1] سورة النحل
[2] سورة النحل
[3] سورة الاسراء (بني اسرائيل)

وَمَن يَهْدِ اللّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُمْ أَوْلِيَاء مِن دُونِهِ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى وُجُوهِهِمْ عُمْيًا وَبُكْمًا وَصُمًّا مَّأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنَاهُمْ سَعِيرًا (97)ذَلِكَ جَزَآؤُهُم بِأَنَّهُمْ كَفَرُواْ بِآيَاتِنَا وَقَالُواْ أَئِذَا كُنَّا عِظَامًا وَرُفَاتًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ خَلْقًا جَدِيدًا (98). [1]

ترجمة : او هر هغه چاته چې سمه لياره و ښودله الله نو همغه د سمې لياري موندونكى دى او هرڅوک چې ئې ګمراه كړي (الله ) نو له سره به نه مومې ته دوى ته نور دوستان بې له دغه (الله چې سمه لياره ور وښيي) او را جمع به كړو (مونږ) دوى لره په ورځ د قيامت كې (نسكور تلونكى په سبب د بدو عملونو د دوى) پر مخونو خپلو چې ړانده او ګونګيان به وي او كاڼه به وي (په سبب د بدو اعمالو خپلو) ځاى د دوى دوزخ وي هر كله چې غلې شي (لمبې د دوزخ) زيات به كړو دوى ته تيز اور دا (عذاب) جزاء د دوى ده په سبب د دې چې بېشكه دوى كافران شوي وو په آيتونو زمونږ او ويل به دوى آيا كله چې شو مونږ هډوكي او خاورې ريژېدلې آيا مونږ خامخا بيا پورته كاوه شو په پيدائښت نوي سره.

وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِّلْكَافِرِينَ عَرْضًا (100) الَّذِينَ كَانَتْ أَعْيُنُهُمْ فِي غِطَاء عَن ذِكْرِي وَكَانُوا لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا (101) فَحَسِبَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن يَتَّخِذُوا عِبَادِي مِن دُونِي أَوْلِيَاء إِنَّا أَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ نُزُلًا (102) . [2]

ترجمة : او را وړاندې (نېږدې او ښكاره) به كړو دوزخ په دغې ورځې كې كافرانو ته په وړاندې نيږدې ښكاره (د پاره د هيبت) هغه كافران چې وي (د زړه) سترګې د دوى په پرده كې (له ډېره غفلته) له ياده زما او وو دوى چې نه توانېدل آوريدل (د كلام د حق له جهته د بغض د نبي) آيا ګمان كوي هغه كسان چې كافران شوي دي

---

[1] سورة الاسراء (بني اسرائيل)
[2] سورة الكهف

د دې چې نيسي دوی بندګان زما (عيسى، عزير، ملائک) پرته له ما څخه دوستان (معبودان چې زه دوی نه په عذابوم بلکه) بېشکه مونږ تيار کړی مو دی دوزخ د پاره د کافرانو پړاو (يا مېلمستيا).

لَوْ يَعْلَمُ الَّذِينَ كَفَرُوا حِينَ لَا يَكُفُّونَ عَن وُجُوهِهِمُ النَّارَ وَلَا عَن ظُهُورِهِمْ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ (39). [1]

ترجمة: که پوهېدلي وی هغه کسان چې کافران شوي دي هغه وخت چې نه به شي منع کولی له مخونو خپلو اور (د دوزخ) او نه له شاګانو خپلو (ځکه چې اور به ترې چاپېر وي) او نه به له دوی سره مرسته (مدد) وکړل شي.

هَذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ فَالَّذِينَ كَفَرُوا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِّن نَّارٍ يُصَبُّ مِن فَوْقِ رُؤُوسِهِمُ الْحَمِيمُ (19) يُصْهَرُ بِهِ مَا فِي بُطُونِهِمْ وَالْجُلُودُ (20) وَلَهُم مَّقَامِعُ مِنْ حَدِيدٍ (21) كُلَّمَا أَرَادُوا أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا مِنْ غَمٍّ أُعِيدُوا فِيهَا وَذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ (22) [2]

ترجمة: دا دواړه (ډلې مؤمنان او کافران) مدعيان دي چې جګړه ئې وکړه په (ذات، صفات او دين د) رب خپل کې پس هغه کسان چې کافران شوي دي ځکختي (جوړولی) شي دوی د پاره جامې له اوره اچولی به شي (په شدت سره) له پاسه د سرونو د دوی اوبه سرې ايشېدلې چې خوړين به شي په دغو اوبو سره هغه (کلمې) چې په ګېډو د دوی کې دي او پوستکي (د دوی هم) او وي به د دوی د پاره څټکونه (ګرزونه) له وسپنې (چې د دوی سرونه به پرې ټکولی او وهلی شي) هرکله چې اراده وکړي (دوزخيان) د دې چې ووزي له دغه (دوزخ څخه) له غمه نو بېرته ګرځولی شي دوی په

---

1 سورة الانبياء

2 سورة الحج

دغه (اور) کې او (وبه ویلی شي دوی ته) و څکئ تاسې عذاب (د اور ډېر) سوزوونکی.

لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا مُعْجِزِينَ فِي الْأَرْضِ وَمَأْوَاهُمُ النَّارُ وَلَبِئْسَ الْمَصِيرُ (57).[1]

ترجمة:مه کوه گمان خامخا پر هغو کسانو چې کافران شوي دي عاجز کوونکی (د الله ) په زمکه کې او ځای د هستوگنې د دوی اور (د دوزخ) دی او خامخا بد ځای و رتلو دی (دا دوزخ) .

يَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ (54) .[2]

ترجمة : بیړه (تلوار) کوي کفار په تا (په راتلو) د عذاب (په دنیا کې) حال دا چې بېشکه دوزخ خامخا احاطه کوونکی دی په کافرانو.

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءهُ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكَافِرِينَ (68).[3]

ترجمة : او څوک دی ډېر ظالم له هغه چا چې له ځانه وتړي په الله دروغ (چې بې حجته ورته شریک نیسي) یا تکذیب وکړي د حق (رسول او قرآن) کله چې راشي هغه ده ته (بلکه له ده نه ډېر ظالم نشته) آیا نشته (بلکه شته) په دوزخ کې ځای د هستوگنې له پاره د کافرانو.

وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَلِقَاء الْآخِرَةِ فَأُوْلَئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُونَ (16).[4]

---

1 سورة النور
2 سورة العنكبوت
3 سورة العنكبوت
4 سورة الروم

ترجمة: او هرڅه هغه کسان چې کافران شوي دي او دروغجن ئې شمېرلي دي آيتونه (د قرآن) زمونږ او (کافران دي) په ملاقات د آخرت پس دغه کسان په عذاب کې حاضر کړل شوي دي .

وَمَن كَفَرَ فَلَا يَحْزُنكَ كُفْرُهُ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ فَنُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ (23) نُمَتِّعُهُمْ قَلِيلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ إِلَى عَذَابٍ غَلِيظٍ (24). 1

ترجمة: او هرڅوک چې کافر شو پس نه دي خفه کوي تا (اې محمده ﷺ!) کفر د ده (ځکه چې) خاص مونږ ته دي بيا راتلله د دوی په قيامت کې پس خبر به کړو مونږ دوی په هغو اعمالو چې کړي ئې دي بېشکه چې الله ښه عالم دی په هغو خبرو چې په سينو (د دوی) کې دي نفع به ورکړو مونږ دوی ته (په دنيا کې) لږ شانې بيا راولو دوی په ډېره ناچاري عاجزي سره په طرف د عذاب سخت (د دووزخ).

لِيَسْأَلَ الصَّادِقِينَ عَن صِدْقِهِمْ وَأَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا أَلِيمًا (8) . 2

ترجمة: د پاره د دې چې و پوښتي (الله) له صادقانو څخه له صدق (رښتيا) د دوی او (الله) تيار کړی دی د پاره د کافرانو عذاب دردناک.

إِنَّ اللَّهَ لَعَنَ الْكَافِرِينَ وَأَعَدَّ لَهُمْ سَعِيرًا (64) خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا لَّا يَجِدُونَ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا (65) يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُولُونَ يَا لَيْتَنَا أَطَعْنَا اللَّهَ وَأَطَعْنَا الرَّسُولَا (66) وَقَالُوا رَبَّنَا إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَاءنَا فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا (67) رَبَّنَا آتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ وَالْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيرًا (68). 3

ترجمة: بېشکه الله رټلي دي کافران (منکران د بعث له رحمت خپله) او تيار کړی ئې دي دوی ته

1 سورة لقمان
2 سورة الاحزاب
3 سورة الاحزاب

سختې لمبې وهونکي اور په دغه حال کې چې همېشه به اوسيږي په دغه اور کې تل تر تله نه به مومي دوی هېڅ دوست (چې ئې تري وباسي) او نه کوم مددگار (چې عذاب تري لري کړي ياده کړه) هغه ورځ چې تاوولی به شي مخونه د دوی په اور کې وائي به دوی اې کاشکي مونږ اطاعت کړی وی د الله او اطاعت کړی وی مونږ د رسول (د الله) او وبه وايي دوی اې ربه زمونږ بېشکه مونږ اطاعت کړی وو د مشرانو خپلو او د غټانو خپلو پس ورکه کړه دوی له مونږ ځنې سمه لاره اې ربه زمونږ ورکړه دوی ته دوه چنده له عذابه او لرې کړه دوی له رحمته خپله ورټه دوی رټل لوی .

فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَلَا ضَرًّا وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّتِي كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ (42). 1

ترجمة : (نو الله فرمايي) پس نن ورځ نه لري اختيار ځينې ستاسې (معبودان) د پاره د ځينو نورو (عابدانو) نه د نفعې او نه د ضرر او وبه وايو مونږ د پاره د هغو کافرانو چې ظلم ئې کړی دی و څکئ تاسې عذاب د اور هغه چې وئ تاسې چې د دې (اور) تکذيب مو کاوه .

الَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ (7) [2]

ترجمة : هغه کسان چې کافران شوي دي شته دوی ته عذاب سخت او هغه کسان چې ايمان ئې راوړی دی (او له شيطانه ئې مخالفت کړی دی) او کړي ئې دي ښه (عملونه) شته دوی ته مغفرت بښنه او اجر ډېر لوی .

---

1 سورة سباء
2 سورة فاطر

وَالَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ لَا يُقْضَى عَلَيْهِمْ فَيَمُوتُوا وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُم مِّنْ عَذَابِهَا كَذَلِكَ نَجْزِي كُلَّ كَفُورٍ (36). [1]

ترجمة: او هغه کسان چې کافران شوي دي شته دوی ته اور د دوزخ حکم به ونه کولی شي پر دوی ( د دوهم مرګ چې) پس مړه (او په آرام) شي او نه به سپکوالی کاوه شي له دوی نه له عذابه د دوې (اور د دوزخ) هم داسې جزاء ورکوو مونږ هر ناشکره (بې ایمانه) ته.

هَذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ (63) اصْلَوْهَا الْيَوْمَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ (64) الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَى أَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَا أَيْدِيهِمْ وَتَشْهَدُ أَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ (65). [2]

ترجمة: دا دوزخ دی هغه چې وئ تاسې چې (په دنیا کې) وعده ئې درسره کړل شوې وه ځئ ننوزئ په ده کې نن ورځ په سبب د هغې چې وئ تاسې (په دنیا کې) چې کافران کېدئ نن ورځ به مهر ووهو پر خولو د دوی او خبرې به وکړي له مونږ سره لاسونه د دوی او شاهدي به ورکړي پښې د دوی په هغو کارونو چې وو دوی چې کول به دوی (په دنیا کې) .

وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاء وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا ذَلِكَ ظَنُّ الَّذِينَ كَفَرُوا فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا مِنَ النَّارِ (27). [3]

ترجمة: او نه دي پیدا کړي مونږ دغه آسمانونه او زمکه او هغه ګرد (ټول) مخلوقات چې د دغو دواړو په مینځ کې دي په باطله سره دغه (پیدا کول د دغو په باطله سره) ګمان د هغو کسانو دی چې کافران شوي دي پس عذاب هلاکت خرابي ده د پاره د هغو کسانو چې کافران شوي دي له اوره (چې سوزي به په کې) .

---

[1] سورة فاطر
[2] سورة يس
[3] سورة ص

فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَذَبَ عَلَى اللَّهِ وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ إِذْ جَاءهُ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكَافِرِينَ (32) [1]

ترجمة :پس څوک دی ډېر ظالم؟ (بلکه نشته) له هغه چا چې دروغ تړي پر الله (په لرلو د شريک زوی ښځې) او دروغ شميري رښتيا خبره (قرآن) کله چې راشي (دغه قرآن) دغه (مکذب) ته آيا نشته په دوزخ کې ځای د پاره د کافرانو؟ (بلکه شته) .

وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَى جَهَنَّمَ زُمَرًا حَتَّى إِذَا جَاؤُوهَا فُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَتْلُونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِ رَبِّكُمْ وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَاء يَوْمِكُمْ هَذَا قَالُوا بَلَى وَلَكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ عَلَى الْكَافِرِينَ (71). [2]

ترجمة: او شړل را ښکل کيږي (په شدت سره) هغه کسان چې کافران شوي دي طرف د دوزخ ته ډلې ډلې تر هغه پورې چې راشي دوی دوزخ ته حال دا چې وبه پرانيستلی شي دروازې د دغه (دوزخ) وبه وايي دوی ته خزانچيان (متصرفان) د دغه (دوزخ) آيا نه ؤ راغلی تاسې ته رسولان له تاسې نه چې لوستل به دغو (رسولانو د تاسې) پر تاسې آيتونه (د قرآن) د رب ستاسې او ويرول به دوی تاسې له ملاقات د هغې ورځې ستاسې چې دغه ده وبه وايي (کفار چې ولې نه وو راغلی) بلکه راغلی وو وليکن ثابته شوېده کلمه (حکم) د عذاب پر کافرانو و به ويل شي دوی ته ننوزئ دروازو د دوزخ ته په دې حال کې چې همېشه اوسيدونکي اوسئ په ده کې پس بد دی ځای د هستوګنې د متکبرانو (دا دوزخ) .

وَكَذَلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّهُمْ أَصْحَابُ النَّارِ (6). [3]

---

1 **سورة الزمر**
2 **سورة الزمر**
3 **سورة المؤمن (الغافر)**

ترجمة : هم داسې (لکه وجوب د عذاب پر دغو مکذبینو) واجبه شوې ده خبره (د عذاب) د رب ستا پر هغو کسانو چې کافران شوي دي (هغه کلمه دا ده چې) بېشکه دوی ملګري د اور (د دوزخ) دي.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنَادَوْنَ لَمَقْتُ اللَّهِ أَكْبَرُ مِن مَّقْتِكُمْ أَنفُسَكُمْ إِذْ تُدْعَوْنَ إِلَى الْإِيمَانِ فَتَكْفُرُونَ (10) قَالُوا رَبَّنَا أَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَأَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوبِنَا فَهَلْ إِلَى خُرُوجٍ مِّن سَبِيلٍ (11) ذَلِكُم بِأَنَّهُ إِذَا دُعِيَ اللَّهُ وَحْدَهُ كَفَرْتُمْ وَإِن يُشْرَكْ بِهِ تُؤْمِنُوا فَالْحُكْمُ لِلَّهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيرِ (12). [1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي (چې دوزخ ته داخل کړل شي نو) غږ به ورته وکړ شي (په ژبو د ملائکو چې) خامخا دښمني (او قهر) د الله (پر تاسې باندې) ډېر لوی دی له دښمني (او قهر) ستاسې له ځانونو خپلو سره کله چې وبه بللی شوئ تاسې (په دنیا کې ) طرف د ایمان راوړلو ته پس کافران کېدئ به تاسې (او له ایمانه به تښتېدلئ) (نو) وبه وایي (دا کفار) اې ربه زمونږ مړه دې کړو مونږ دوه ځلې او ژوندي دې کړو مونږ دوه ځلې پس قائل شو مونږ په ګناهونو خپلو پس آیا شته د وتلو (زمونږ ته له دغه دوزخه) کومه لاره! دغه (ابدي عذاب) تاسې ته په سبب د دې دی کله چې وبه بالله شو الله یوازې (بې له خدایانو ستاسې) نو کفر به اختیار کړ تاسې او که شریکان به هم وبللی شول له الله سره نو ایمان به راوړو تاسې پس حکم خاص الله لره دی (چې هر څه کوي دغه الله ) ډېر پورته دی (له شرکه) ډېر لوی دی.

[1] سورة المؤمن (الغافر)

وَقَالَ الَّذِينَ فِي النَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ادْعُوا رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ الْعَذَابِ (49)قَالُوا أَوَلَمْ تَكُ تَأْتِيكُمْ رُسُلُكُم بِالْبَيِّنَاتِ قَالُوا بَلَى قَالُوا فَادْعُوا وَمَا دُعَاء الْكَافِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَالٍ (50). [1]

ترجمة : او وبه وايي هغه کسان (چې پراته دي) په اور کې خزانچيانو متصرفانو د دوزخ ته چې دعاء وکړئ (زمونږ د پاره) رب خپل ته چې سپک کړي له مونږه يوه ورځ له عذابه (چې لږ څه په ارام شو) وبه وايي (متصرفان د دوزخ دوزخيانو ته) آيا نه وو راغلي تاسې ته رسولان ستاسې په دلا ئلو ښکاره وو (د قدرت) وايي (ولي نه وو راغلي) بلکه راغلي وو نو وبه وايي (متصرفان د دوزخ) پس وبولئ تاسې (پخپله الله ) او نه ده دعاء د کافرانو مګر په ګمراهي کې (چې هيڅ فايده ورته نه رسوي) .

فَلَنُذِيقَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا عَذَابًا شَدِيدًا وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَسْوَأَ الَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ (27)ذَلِكَ جَزَاء أَعْدَاء اللَّهِ النَّارُ لَهُمْ فِيهَا دَارُ الْخُلْدِ جَزَاء بِمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا يَجْحَدُونَ (28). [2]

ترجمة : (فرمايي الله چې) پس خامخا به و څکوو مونږ هرو مرو (خامخا) هغو کسانو ته چې کافران شوي دي عذاب سخت او خامخا جزاء به ورکړو مونږ دوی ته ډيره بده سزا د هغو اعمالو چې وو دوی چې کول به يې دغه (سخت عذاب جزاء ده د دښمنانو د الله (يعني) چې اور دی شته دوی ته په دغه اور کې کور د همېشه والي (د پاره د جزاء) په جزاء ورکولو په سبب د هغه چې وو دوی (په دنيا کې) چې په آيتونو زمونږ (قرآن) انکار به يې کولو.

---

[1] سورة المؤمن (الغافر)
[2] سورة حم السجدة (فصلت)

وَيَسْتَجِيبُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَيَزِيدُهُم مِّن فَضْلِهِ وَالْكَافِرُونَ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ (26). [1]

ترجمة : او قبلوي (الله دعاء) د هغو کسانو چې ايمان ئې راوړی دی او کړي ئې دي ښه (عملونه) او زيادت کوي (دوی ته) له مهرباني خپلې او کافران چې دي شته دوی ته عذاب ډېر سخت (د دوزخ) .

هَذَا هُدًى وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ لَهُمْ عَذَابٌ مِّن رِّجْزٍ أَلِيمٌ (11) . [2]

ترجمة :دغه (قرآن کامل) هدايت دی او هغه کسان چې کافران شوي دي په آيتونو د رب خپل شته دوی ته عذاب له (هغه ډېر سخت) عذاب درد رسوونکی نه.

وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا أَفَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي تُتْلَى عَلَيْكُمْ فَاسْتَكْبَرْتُمْ وَكُنتُمْ قَوْمًا مُّجْرِمِينَ (31) وَإِذَا قِيلَ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيهَا قُلْتُم مَّا نَدْرِي مَا السَّاعَةُ إِن نَّظُنُّ إِلَّا ظَنًّا وَمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِينَ (32) وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِؤُون (33) وَقِيلَ الْيَوْمَ نَنسَاكُمْ كَمَا نَسِيتُمْ لِقَاء يَوْمِكُمْ هَذَا وَمَأْوَاكُمْ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن نَّاصِرِينَ (34) ذَلِكُم بِأَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا وَغَرَّتْكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُونَ مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ (35).[3]

ترجمة :او هر څه هغه کسان چې کافران شوي دي (وبه ويل شي دوی ته داسې) آيا نه وو آيتونه (د قرآن) زما چې لوستل کيدل به پر تاسې باندې پس تکبر مو وکړ (او ايمان مو پرې نه راووړ) او وئ تاسې قوم ګنهګاران (کافران) او هر کله چې وبه ويل شو (تاسو ته اې کفارو چې) بېشکه وعده د الله حقه ده (په ژوندون سره) او قيامت نشته شک په (راتلو) د هغه کې نو وبه ويل تاسې نه پوهېږو چې څه شی دی قيامت ګمان نه کوو مګر

[1] سورة الشورى
[2] سورة الجاثية
[3] سورة الجاثية

ګمان لېږ او نه يو مونږ يقين راوړونکي (په راتلو د قيامت) او ښکاره به شي (په قيامت کې ) دوى ته نا كاره والى (بدې جزاوې) د هغو (بدو اعمالو) چې کړي وو دوى (په دنيا کې) او چاپېر (نازل) به شي په دوى عذاب هغه چې وو دوى چې په هغه پورې به يې مسخرې كولې او وبه ويل شي چې نن ورځ به هېر کړو (پرې به ږدو) مونږ تاسې (په دوزخ کې) لکه چې هېر کړى وو تاسې ملاقات د ورځې ستاسې دغه (چې ورځ د قيامت ده) او ځاى ستاسې اور دى او نشته تاسو ته هېڅوک له مددګارانو (چې مو ترې خلاص كړي) دغه (تعذيب له دې سببه دى) چې بېشكه تاسې نيولي مو وو آيتونه (د قرآن) د الله په ټوكو سره او مغرور کړي وئ تاسې دغه ژوندن لږ خسيس نو نن ورځ وبه نه ايستلى شي دوى له دوزخه او نه به د دوى عذر قبول (او توبه ومنله) شي.

وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِينَ كَفَرُوا عَلَى النَّارِ أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُم بِهَا فَالْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ بِمَا كُنتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنتُمْ تَفْسُقُونَ (20). [1]

ترجمة :او ياد كړه (اې محمده ﷺ!) هغه ورځ چې وړاندې كړل شي هغه كسان چې كافران شوي دي پر اور (د دوزخ باندې او وبه ويلى شي ورته) چې وړي دي تاسې مزې نيكې خپلې په ژوندون لږ خسيس خپل کې او نفع اخيستې ده تاسې په هغه سره (په دنيا کې) پس نن ورځ به جزاء دركوله شي تاسې ته د عذاب سپكوونكي په سبب د هغې چې وئ به تاسو (په دنيا کې) چې تكبر لوئي به مو كوله په زمكه کې په ناحقه سره او په سبب د هغې چې وئ تاسو چې نافرماني به مو كوله (په دنيا کې) .

[1] سورة الاحقاف

وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِينَ كَفَرُوا عَلَى النَّارِ أَلَيْسَ هَذَا بِالْحَقِّ قَالُوا بَلَى وَرَبِّنَا قَالَ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ (34). [1]

ترجمة : او ياد كړه هغه ورځ چې وړاندې به كړل شي هغه كسان چې كافران شوي دي په اور باندې (وبه ويل شي دوی ته) آيا نه وو دغه (عذاب) حق رښتيا نو وبه وائي دوی چې هو! حق او رښتيا ده زمونږ قسم دی په رب زمونږ فرمائي به نو وڅكئ تاسې عذاب په سبب د هغه چې وئ تاسې چې كافران كېدلئ.

وَمَن لَّمْ يُؤْمِن بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ فَإِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ سَعِيرًا (13). 2

ترجمة : او هر هغه چې ايمان ئې نه وي راوړی په الله او رسول د دغه (الله) نو بېشكه مونږ تيار كړی دی كافرانو ته تود اور (د دوزخ) .

أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ (24) مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُّرِيبٍ (25) الَّذِي جَعَلَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ فَأَلْقِيَاهُ فِي الْعَذَابِ الشَّدِيدِ (26). [3]

ترجمة : (نو وبه ويل شي دوو فرښتو ته) وغورځوئ تاسې په دوزخ كې هر يو كافر عناد كوونكی منع كوونكی د خير تېرېدونكي له حدودو مشروعو ظالم او شك كوونكی (په دين كې) هغه (كافر) چې ګرځولی ئې دی سره له الله (الله بل) نو وغورځوئ دی په عذاب سخت كې.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ خَالِدِينَ فِيهَا وَبِئْسَ الْمَصِيرُ (10). [4]

---

[1] سورة الاحقاف
[2] سورة الفتح
[3] سورة ق
[4] سورة التغابن

ترجمة : او هغه کسان چې کافران شوي دي او نسبت د دروغو کوي آیتونو زمونږ ته دغه کسان دي یاران ملګري د دوزخ تل به وي دوی په هغه (دوزخ) کې او بد ځای د ورتللو دی (دا دوزخ) .

وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ أُوْلَئِكَ هُمُ الصِّدِّيقُونَ وَالشُّهَدَاء عِندَ رَبِّهِمْ لَهُمْ أَجْرُهُمْ وَنُورُهُمْ وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ (19). [1]

ترجمة :او هغه کسان چې ایمان ئې راوړی دی په الله او په (ټولو) رسولانو د دغه (الله ) دغه کسان هم دوی دي ډیر رښتیني او شاهدان (په ورځ د قیامت کې پر دروغ ویونکیو باندې) په نزد د رب خپل وي به دغو (صدیقانو مؤمنانو) ته اجر د دوی او رڼا د دوی چې پرې تیریږي به په پل صراط باندې) او هغه کسان چې کافران شوي دي او نسبت د دروغو ئې کړی دی آیاتونو زمونږ ته هغوی دي یاران ملګري د دوزخ (چې اصلا د هم دوی لپاره جوړ شوی دی) .

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ نُهُوا عَنِ النَّجْوَى ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا نُهُوا عَنْهُ وَيَتَنَاجَوْنَ بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُولِ وَإِذَا جَاؤُوكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللَّهُ وَيَقُولُونَ فِي أَنفُسِهِمْ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللَّهُ بِمَا نَقُولُ حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ الْمَصِيرُ (8). [2]

ترجمة : آیا نه وینې ته نه ئې خبر هغه کسان چې منع کړل شوي وو له پټو خبرو څخه بیا بېرته ور وګرځېدل دوی هغه شي ته چې منع کړل شو وو دوی له هغه څخه او پټې خبرې کوي دوی په ګناه سره او په تجاوز دښمني ظلم سره او په معصیت نافرماني د رسول الله ﷺ سره او کله چې راشي دوی تاته (اې محمده ﷺ!) نو پیشکشي درکوي سلام اچوي تاته په هغه شي سره چې پیشکشي نه ده مقرره

---

[1] **سورة الحديد**
[2] **سورة المجادلة**

کړې تاته په هغه شي سره الله (په ځای د السلام عليک السام عليک وايي) او وايي دوی په نفسونو زړونو خپلو کې ولې نه په عذابوي مونږ الله په هغه (غلط) څه چې وايو ئې (نو فرمايي الله ) بس دی دوی ته (په تعذيب کې) دوزخ چې ور ننوځي پکې نو بد ځای د ورتللو دی (دا دوزخ).

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ (9).[1]

ترجمة : اې نبي (محمده ﷺ!) جهاد کوه ته له کفارو سره (په توره) او له منافقانو سره (په حجت او اقامت د حدودو) او سختي کوه پر دوی او (آخري) ځای د ورتلو د دوی دوزخ دی او بد ځای د بېرته ورتلو دی (دا دوزخ)

وَلِلَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ (6) إِذَا أُلْقُوا فِيهَا سَمِعُوا لَهَا شَهِيقًا وَهِيَ تَفُورُ (7) تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ الْغَيْظِ كُلَّمَا أُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ سَأَلَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ (8) قَالُوا بَلَى قَدْ جَاءنَا نَذِيرٌ فَكَذَّبْنَا وَقُلْنَا مَا نَزَّلَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا فِي ضَلَالٍ كَبِيرٍ (9) وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ (10) فَاعْتَرَفُوا بِذَنبِهِمْ فَسُحْقًا لِّأَصْحَابِ السَّعِيرِ (11).[2]

ترجمة :او شته د پاره د هغو کسانو چې کافران شوي دي په رب خپل باندې عذاب د دوزخ او بد مرجع ځای د ورتللو دی (دا دوزخ) کله چې وغورځولی شي (کافران) په دغه (اور د دوزخ) کې وابه وري دوی دغه (دوزخ لره) آواز لوی بد او هغه خوټېږي نېږدې به وي (دا دوزخ) چې ټوټې ټوټې شي له جهته د قهره (غضب پر کفارو باندې) هر کله چې وغورځوله شي پکې يوه ډله (د منکرانو) پوښتنه به وکړي (توبيخاً) له هغوی نه خازنانې د دوزخ (داسې چې ) آيا نه وو راغلی

---

[1] سورة التحريم
[2] سورة الملک

تاسې ته (اې منکرانو) وېر وونکی (پیغمبر په دنیا کې) نو وبه وایي (منکران داسې چې) هو! په تحقیق راغلی وو مونږ ته وېروونکی (پیغمبر) نو دروغجن وباله مونږ او وویل مونږ (هغوی ته چې) نه دې رالېږلی الله هېڅ شی نه یئ تاسې مګر په ګمراهي لویه کې او وبه وایي (منکران) که چېرې وی مونږ چې آورېدلی مو (خبرې د انبیاوو په دنیا کې په سماع القبول سره) یا مو عقل لرلی ( په خیر او شر خپل) نو نه به وو مونږ (نن) په اهل ملګرو د دوزخ کې نو اقرار ئې وکړ (قائل شول) دوی په ګناه خپلې باندې نو (لرې کړي دي دوی لره الله له رحمته لرې والی خاوندانو د دوزخ لره .

وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِشِمَالِهِ فَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي لَمْ أُوتَ كِتَابِيهْ (25) وَلَمْ أَدْرِ مَا حِسَابِيهْ (26) يَا لَيْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِيَةَ (27) مَا أَغْنَى عَنِّي مَالِيهْ (28) هَلَكَ عَنِّي سُلْطَانِيهْ (29) خُذُوهُ فَغُلُّوهُ (30) ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ (31) ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ (32) إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ الْعَظِيمِ (33) وَلَا يَحُضُّ عَلَى طَعَامِ الْمِسْكِينِ (34) فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هَاهُنَا حَمِيمٌ (35) وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ (36) لَا يَأْكُلُهُ إِلَّا الْخَاطِؤُونَ (37).[1]

ترجمة : او هر هغه څوک چې ور کړ شی کتاب (اعمالنامه) د ده په کینڼ لاس د ده نو وبه وائي (له غمه داسې چې) ای کاشکي نه وی راکړل شوې ماته دا کتاب (اعمالنامه) زما او نه وم پوه شوی زه چې څه دی حساب زما ای کاشکي وی (ړومبنی مرګ څما په دنیا کې) خلاصوونکی (څما له دوهم حیات) هیڅ دفع ونه کړه له ما څنې مال زما برباد شو له ما څنې سلطنت حکومت زماو نیسئ دی! پس په ځنځیر سره وتړئ دی! بیا (اورد) د دوزخ ته وغورځوئ دی! بیا په ځنځیر کې چې ګزونه د هغه اویا ګزه وي پس ننه باسئ دی (په دوزخ کې) بېشکه دی وو (په دنیا) چې

---

[1] سورة الحاقة

ایمان ئې نه راوړو په الله لوی باندې او تاکید تیز والی ئې نه کاوه په طعام ورکولو د مسکینانو محتاجانو باندې نو نشته ده ته نن ورځ په دې ځای کې کوم دوست (دافع د عذاب) او نشته هېڅ طعام (چې وئې خوري) مګر خو (د دوزخیانو د زخمونو) له وینو او زوو ځنې چې نه خوري دغه (غسلین) مګر همغه خطاکاران ګناهکاران (ئې خوري)

إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ سَلَاسِلَا وَأَغْلَالًا وَسَعِيرًا (4) . [1]

ترجمة : بېشکه مونږ تیار کړي مو دي کافرانو ته ځنځیرونه او طوقونه او تود اور (لمبې وهونکی چې تل به پکې سوزي)

وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا هُمْ أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ (19) عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌ (20). [2]

ترجمة : او هغه کسان چې کافران شوي دي په آیتونو زمونږ هم دوی اصحاب خاوندان د کیڼ طرف د بدې برخې دي وي به پر دوی باندې اور سرپوښ کړل شوی.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أُوْلَئِكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ (6). [3]

ترجمة :بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي له اهل د کتابو او مشرکان وي به په اور د دوزخ کې (په قیامت کې) چې تل به وي دوی په هغه (دوزخ) کې دا (خلق دي) هم دوی ډېر بد دخلقو.

## مشرکین

---

1 سورة الدهر (الانسان)
2 سورة البلد
3 سورة البينة

تول هغه کسان چې په څه نه څه کې يې د الله سره شريک منلی وي او د الله له وحدانيت نه يې انکار کړی وي يا يې د الله نه بغير د بل شي يا چا عبادت کړی وي دا ډېره لويه ګناه ده الله هره ګناه ښي خو شرک نه ښي الله فرمايي : **إِنَّ اللّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاء وَمَن يُشْرِكْ بِاللّهِ فَقَدِ افْتَرَى إِثْمًا عَظِيمًا (48).** [1]

ترجمة : بېشکه چې الله نه ښي دا چې شريک ونيول شي له (الله سره او ښي هغه (ګناه) چې ښکته وي له شرکه (لويه وي که وړه وي) هغه چاته چې اراده وفرمائي (د ښنې يې) او هر هغه څوک چې شريک ونيسي له الله سره نو په تحقيق ويې تړل (په الله ) دروواغ لوی (او وئې کړه) ګناه ډېره لويه .

مشرک به هم اور ته ورځي او د مشرک په اړه هم قرآن کريم په مختلفو او متعددو ځايونو کې تصريح کړېده چې مشرکان به دوزخ ته ځي الله فرمايي :

**سَنُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُواْ الرُّعْبَ بِمَا أَشْرَكُواْ بِاللّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا وَمَأْوَاهُمُ النَّارُ وَبِئْسَ مَثْوَى الظَّالِمِينَ (151).** [2]

ترجمة : ژر به وغورځوو مونږ په زړونو د هغو کسانو کې چې کافران شوي دي رعب (هيبت _ ويره) په سبب د شريک نيولو د دوی په الله سره هغه شی چې نه دی نازل کړی (الله ) په (شريک نيولو د ) هغه کوم برهان (دليل) او ځای د هستوګنې د دوی اور (د دوزخ) دی او بد ځای د هستوګنې د ظالمانو دی (دا اور د دوزخ) .

---

1 **سورة النساء**
2 **سورة آل عمران**

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُواْ إِنَّ اللّهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ وَقَالَ الْمَسِيحُ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ اعْبُدُواْ اللّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ إِنَّهُ مَن يُشْرِكْ بِاللّهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّهُ عَلَيهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَاهُ النَّارُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ (72). 1

ترجمة : خامخا په تحقيق كافران شوي دي هغه كسان چې وائي دوى (له ډېره جهله) چې بېشكه الله هم دغه مسيح زوى د مريمې دى او ويل به مسيح چې اې بنې اسرائيلو (اولادې د يعقوب!) عبادت كوئ تاسې د (يوازې هغه) الله چې رب زما او رب ستاسې دى بېشكه شان دادى چې هرچا چې شريك ونيو له الله سره (په عبادت كې بل شى) نو په تحقيق حرام كړى دى الله په دغه (مشرک) باندې جنت او ځاى د ده اور (د دوزخ دى) او نشته ظالمانو ته هېڅ مدد كوونكى (چې عذاب ترې دفعه كړي) .

مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَن يَعْمُرُواْ مَسَاجِدَ الله شَاهِدِينَ عَلَى أَنفُسِهِمْ بِالْكُفْرِ أُوْلَئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ وَفِي النَّارِ هُمْ خَالِدُونَ (17). 2

ترجمة : نشته مشركانو ته (يعني ناروا دي يا نه دى له شانه د مشركانو) دا چې ودان كړي مسجدونه د الله (په عبادت په ناسته ولاړه او ورتللو سره) حال دا چې شاهدان وي دوى پر نفسونو خپلو په كفر سره دغه مشركان چې كوم دي خراب دي عملونه د دوى (چې ايمان نه لري) او په اور كې به دوى همېشه وي.

مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُواْ أَن يَسْتَغْفِرُواْ لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُواْ أُوْلِي قُرْبَى مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ (113). 3

ترجمة : نه دي (لائق او روا) نبي ته او (نه دى لا يق او روا) هغو كسانو ته چې ايمان لرونكي

1 سورة المائدة
2 سورة التوبة
3 سورة التوبة

دي دغه چې مغفرت وغواړي دوی د پاره د مشرکانو او اګر که وي دا (مشرکان) خاوندان د خپلوۍ وروسته له دې خبرې چې ښکاره شي دوی ته چې بېشکه دوی صاحبان دي د دوزخ (او په کفر مړه دي) .

ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُخْزِيهِمْ وَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَآئِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تُشَاقُّونَ فِيهِمْ قَالَ الَّذِينَ أُوتُواْ الْعِلْمَ إِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَالْسُّوءَ عَلَى الْكَافِرِينَ (27) الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلائِكَةُ ظَالِمِي أَنفُسِهِمْ فَأَلْقَوُاْ السَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِن سُوءٍ بَلَى إِنَّ اللّهَ عَلِيمٌ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (28) فَادْخُلُواْ أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ (29).[1]

ترجمة: بیا په ورځ د قیامت کې به (الله وشرموي) رسوا کړي دوی او وبه فرمائي (الله ) چې چېرته دي شریکان زما (ستاسې په ګمان) هغه چې وئ تاسې چې مخالفت به مو کاوه (له انبیاوو او مؤمنانو سره) په باب د دوی کې وبه وائي هغه کسان چې ورکړل شوی دی دوی ته عمل (یعني ملائک ، انبیاء او علماء) چې بېشکه خواري د نن ورځې او بدي (یعني عذاب ئې پر کافرانو دی) هغه (کافران) چې قبضوي (ارواح د) دوی ملائکې په دې حال کې چې ظلم کوونکي دي دوی په نفسونو ځانونو خپلو (په کفر سره) نو وړاندې به کړي روغه (اطاعت او وبه وایي) نه وو مونږه چې عمل به مو کاوه د هېڅ قسم بدي (نو وبه فرمايي الله ولې مو نه کاوه دروغ مه وایئ) بلکه کاوه تاسې معصیت بېشکه چې الله ښه عالم دی په هغه څه چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې) (نو وبه ویلی شي دغو ظالمانو ته) چې ننوزي اوس تاسې په دروازو د دوزخ کې چې همېشه اوسئ په هغه کې نو خامخا بد ځای د هستوګنې د متکبرانو (دا دوزخ دی) .

[1] سورة النحل

ذَلِكَ مِمَّا أَوْحَى إِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ الْحِكْمَةِ وَلاَ تَجْعَلْ مَعَ اللّهِ إِلَهًا آخَرَ فَتُلْقَى فِي جَهَنَّمَ مَلُومًا مَّدْحُورًا (39). [1]

ترجمة : دا (ټول احکام) له داسې قسمه دي چې وحی کړې ده تاته رب ستا له حکمت (او عقلي کارونو څخه) او مه نیسه ته له الله سره معبود بل (که دې ونیو) نو وبه غورځولی شې په دوزخ کې ملامت کړل شوی رټلی شوی (له رحمته د الله) .

أَفَحَسِبَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن يَتَّخِذُوا عِبَادِي مِن دُونِي أَوْلِيَاء إِنَّا أَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ نُزُلًا (102). [2]

ترجمة : آیا ګمان کوي هغه کسان چې کافران شوي دي د دې چې نیسي دوی بندګان زما (عیسی، عزیر، ملائک) پرته (علاوه) له ما څخه دوستان (معبودان چې زه دوی نه په عذابوم بلکه) بېشکه مونږ تیار کړی مو دی (دوزخ) د پاره د کافرانو پړاو (یا مېلمستیا) .

إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ أَنتُمْ لَهَا وَارِدُونَ (98). [3]

ترجمة : بېشکه تاسې او هغه (بتان ، شیطانان) چې عبادت ئې کوئ تاسې بې له الله څخه خس (خاشاک) د دوزخ یئ تاسې (له معبودانو خپلو سره) دې دوزخ ته ننوتونکي یئ.

وَبُرِّزَتِ الْجَحِيمُ لِلْغَاوِينَ (91) وَقِيلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ تَعْبُدُونَ (92) مِن دُونِ اللَّهِ هَلْ يَنصُرُونَكُمْ أَوْ يَنتَصِرُونَ (93) فَكُبْكِبُوا فِيهَا هُمْ وَالْغَاوُونَ (94) وَجُنُودُ إِبْلِيسَ أَجْمَعُونَ (95) قَالُوا وَهُمْ فِيهَا يَخْتَصِمُونَ (96) تَاللَّهِ إِن كُنَّا لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ (97) إِذْ نُسَوِّيكُم بِرَبِّ الْعَالَمِينَ (98) وَمَا أَضَلَّنَا إِلَّا الْمُجْرِمُونَ (99) فَمَا

1 سورة الاسراء (بني اسرائيل)
2 سورة كهف
3 سورة الانبياء

لَنَا مِن شَافِعِينَ (100) وَلَا صَدِيقٍ حَمِيمٍ (101) فَلَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ (102). [1]

ترجمة: او ښکاره به کړل شي جحيم ګمراهانو ته (لپاره د حسرت او خفګان د دوی او وبه ويل شي دوی ته (د فرښتو په ژبه) چې چېرته دي هغه معبودان ستاسې بې له الله چې وئ عبادت به مو کاوه تاسې د هغوی بې له الله نه آيا مدد کوي له تاسې سره (په دفع د عذاب د الله کې) يا څه مدد کوي دوی له خپله ځانه سره (بلکه نه ئې شي کولی) پس وبه غورځول شي (دا بتان) نسکور په دغه (دوزخ) کې دوی (او هم) ګمراهان او لښکر د ابليس (شيطان) ټول (عابدان او معبودان) وبه وايي دوی حال دا چې دوی به په دوزخ کې سره جګړې کوي چې قسم په الله بېشکه شان دا دی چې وو مونږ خامخا په ګمراهي ښکاره کې کله چې برابرولئ مونږ تاسې (په عبادت کې) له رب (پالونکي) د عالميانو سره او نه وو ګمراه کړي مونږ مګر هم دغو مجرمانو (بدو مشرانو زمونږ) پس نشته مونږ ته له سره له شفاعتګرو (هېڅوک) او نه کوم دوست مخلص (چې زمونږ په دغه غم غمجن شي) پس (کاشکي) که وي مونږ ته يو کرت (بېرته ورتګ دنيا ته) پس شوي به وو مونږ له مؤمنانو.

مِن وَرَائِهِمْ جَهَنَّمُ وَلَا يُغْنِي عَنْهُم مَّا كَسَبُوا شَيْئًا وَلَا مَا اتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ أَوْلِيَاء وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ (10). [2]

ترجمة: وروسته له (مرګه) د دوی دوزخ دی او دفعه به نه کړي له دوی نه هغه څيز چې کسب کړی وي دوی هېڅ څيز (له عذابه) او نه (به دفعه کوي) هغه بتان چې نيولي دي دوی بې له الله

1 سورة الشعراء
2 سورة الجاثية

دوستان (معبودان) اوشته دوی ته عذاب ډېر لوی (د دوزخ) .

وَيُعَذِّبَ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْمُشْرِكِينَ وَالْمُشْرِكَاتِ الظَّانِّينَ بِاللَّهِ ظَنَّ السَّوْءِ عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ وَسَاءتْ مَصِيرًا (6). [1]

ترجمة: چې په عذاب کړي (الله ) منافقان سړي او منافقانې ښځې او مشرکان سړي او مشرکانې ښځې چې ګمان کوونکي دي پر الله باندې ګمان د بدی (چې الله به هېڅ کله رسول الله ته بری نه ورکوي) پر دوی باندې دي را ګرځېدل د بدئ (په ذلت او عذاب) سره او غضب کړی دی الله پر دوی باندې او لرې کړي دي (الله دوی له رحمت خپله) او تیار کړی دی الله دوی ته (عذاب د) دوزخ او بد ځای د ورتللو دی( دغه دوزخ).

أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ (24) مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُّرِيبٍ (25) الَّذِي جَعَلَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ فَأَلْقِيَاهُ فِي الْعَذَابِ الشَّدِيدِ (26). [2]

ترجمة: (نو وبه ویل شي دوو فرښتو ته) وغورځوئ تاسې په دوزخ کې هر یو کافر عناد کوونکی منع کوونکی د خیر تېرېدونکي له حدودو مشروعو ظالم او شک کوونکی (په دین کې) هغه (کافر) چې ګرځولی ئې دی سره له الله (الله بل) نو وغورځوئ دی په عذاب سخت کې.

## منافقین

هغه کسان چې په ښکاره کې ځان مسلمان ښکاره کوي او په پټه باندې یې نه اسلام او نه یې مسلمان خوښ وي او په پټه باندې مسلمان نه وي

[1] سورة الفتح
[2] سورة ق

او دا په ښکاره د خپلو غرضونو د لاس ته راوړلو او یا د مسلمانانو په مینځ کې د خوندي پاتې کېدلو لپاره اسلام ښکاره کوي ....

منافقین به هم دوزخ ته ځي قرآن کریم د دوی په اړه هم په متعددو ځایونو کې دوزخ یاد کړی دی الله فرمايي :

إِنَّ اللّهَ جَامِعُ الْمُنَافِقِينَ وَالْكَافِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا (140). [1]

ترجمة : بېشکه چې الله یو ځای کوونکی دی د منافقانو او د کافرانو په دوزخ کې د ټولو په یو ځای کې) .

إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا (145). [2]

ترجمة : بېشکه منافقان دي په طبقه ډېره ښکته کې له اوره (د دوزخ) او له سره به نه مومې ته دوی ته مددګار (له عذابه خلاصوونکی) .

وَعَدَ الله الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا هِيَ حَسْبُهُمْ وَلَعَنَهُمُ اللّهُ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيمٌ (68) [3]

ترجمة :وعده کړې ده الله له منافقانو سړیو سره او له منافقاتو ښځو سره او له (ټولو) کفارو سره اور د دوزخ تل به وي (دوی) په دغه (دوزخ) کې هم دغه دوزخ بس دی دوی ته (د عذاب او سزا له مخې) او لعنت کړی دی په دوی الله او مقرر دی دوی ته عذاب تل مدام (بر قرار پاتې کېدونکی) .

---

1 **سورة النساء**
2 **سورة النساء**
3 **سورة التوبة**

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ (73). [1]

ترجمة: اې نبي (محمده ﷺ!) جهاد کوه ته له کفارو سره (په توره) او له منافقانو سره (په حجت او اقامت د حدودو) او سختي کوه پر دوی او (آخري) ځای د ورتلو د دوی دوزخ دی او بد ځای د بېرته ورتلو دی (دا دوزخ)

وَيُعَذِّبَ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْمُشْرِكِينَ وَالْمُشْرِكَاتِ الظَّانِّينَ بِاللَّهِ ظَنَّ السَّوْءِ عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ وَسَاءتْ مَصِيرًا (6). [2]

ترجمة: چې په عذاب کړي (الله ) منافقان سړي او منافقانې ښځې او مشرکان سړي او مشرکانې ښځې چې گمان کوونکي دي پر الله بانديې گمان د بدی (چې الله به هېڅ کله رسول الله ﷺ ته بری نه ورکوي) پر دوی بانديې دي را گرځېدل د بدۍ (په ذلت او عذاب) سره او غضب کړی دی الله پر دوی بانديې او لري کړي دي (الله دوی له رحمت خپله) او تيار کړی دی الله دوی ته (عذاب د) دوزخ او بد ځای د ورتللو دی( دغه دوزخ) .

يَوْمَ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ لِلَّذِينَ آمَنُوا انظُرُونَا نَقْتَبِسْ مِن نُّورِكُمْ قِيلَ ارْجِعُوا وَرَاءكُمْ فَالْتَمِسُوا نُورًا فَضُرِبَ بَيْنَهُم بِسُورٍ لَّهُ بَابٌ بَاطِنُهُ فِيهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهُ مِن قِبَلِهِ الْعَذَابُ (13)يُنَادُونَهُمْ أَلَمْ نَكُن مَّعَكُمْ قَالُوا بَلَى وَلَكِنَّكُمْ فَتَنتُمْ أَنفُسَكُمْ وَتَرَبَّصْتُمْ وَارْتَبْتُمْ وَغَرَّتْكُمُ الْأَمَانِيُّ حَتَّى جَاء أَمْرُ اللَّهِ وَغَرَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ (14) فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنكُمْ فِدْيَةٌ وَلَا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مَأْوَاكُمُ النَّارُ هِيَ مَوْلَاكُمْ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ (15). [3]

---

[1] **سورة التوبة**
[2] **سورة الفتح**
[3] **سورة الحديد**

ترجمة: (یاده کړه ای محمده ﷺ! هغه) ورځ چې وائي منافقان سړي او منافقانې ښځې هغو کسانو ته چې ایمان ئې راوړی دی (داسې چې) وګورئ مونږ ته (انتظار وکړئ) چې رڼا (رڼرا) واخلو له رڼا (رڼرا) ستاسې نو وبه ویل شي دوی ته (تمسخرا) چې وګرځئ شاؤ خپلو ته پس ولټوئ رڼا پس وبه واهه شي په منځ د دغو (منافقانو او مؤمنانو) کې یو دیوال چې هغه لره به دروازه وی دننه طرف د هغې (دروازی کې به چې د جنت په جانب دی) رحمت وي (مؤمنانو لره) او د باندې طرف ته د هغه (چې جانب د منافقانو دی) له طرفه د هغه څخه به عذاب وی غږ به وکړي (منافقان) دغو (مؤمنانو) ته آیا نه وو مونږ له تاسې سره (ملګري په دنیا کې) نو وبه وایي (مؤمنان منافقانو ته) هو! وئ (تاسې له مونږ سره) مګر تاسې په فتنه کې اچولي وو ځانونه خپل او انتظار کاوه تاسې (په آفتونو او حوادثو مؤمنانو ته) او شک به مو کاوه تاسې (په اسلام کې) او غولولي وئ تېر ایستلي وئ تاسې آروزګانو خپلو تر هغه پورې چې راغی امر حکم د الله (چې مرګ ستاسې دی) او غولولي یئ تاسې په (کرم د) الله باندې غولوونکي (چې شیطان دی) پس نن ورځ وابه نه خیستله شي له تاسې څخه (اې منافقانو) فدیه معاوضه او نه له هغو کسانو څخه چې کافران شوي وو ځای د ورتلو ستاسې (او د دوی ټولو) اور (د دوزخ) دی همغه (اور لائق او) ملګری ستاسې دی او بد ځای د ورتلو دی (دغه دوزخ).

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِم مَّا هُم مِّنكُمْ وَلَا مِنْهُمْ وَيَحْلِفُونَ عَلَى الْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُونَ (14) أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا إِنَّهُمْ سَاء مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (15) اتَّخَذُوا أَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ (16) لَن تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُم مِّنَ اللَّهِ شَيْئًا أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا

خَالِدُونَ (17) يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ جَمِيعًا فَيَحْلِفُونَ لَهُ كَمَا يَحْلِفُونَ لَكُمْ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ عَلَى شَيْءٍ أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ الْكَاذِبُونَ (18). [1]

ترجمة: آيا نه ګورې ته (اې محمده ﷺ!) هغو (منافقانو) ته چې دوستي كوي له (هغه) قومه (د يهودانو) سره چې غضب كړى دى الله پر هغوى باندې نه دي دغه (منافقان) له تاسې (مؤمنانو) څخه او نه له هغو (يهودانو) څخه او قسمونه خوري (منافقان په دعوى د اسلام) په دروغو باندې حال دا چې دوى پوهيږي (پخپلو دروغو) تيار كړى دى الله دوى ته عذاب ډېر سخت بېشكه دوى لره هغه شى چې وو دوى چې كول به يې (له ګناهونو) ګرځولي ئې دي قسمونه خپل ډال (چې پرې ساتي سر او مال خپل) پس منع كړل دوى (په دغو قسمونو سره مؤمنان له لارې د الله (له جهاد) څخه (له دوى سره) پس دوى لره دى عذاب سپكوونكى له سره به دفع نه كړي له دوى څخه هېڅ څيز دغه كسان ياران ملګري د دوزخ دى دوى به په دې دوزخ كې تل اوسېدونكي وي (ياده كړه اې محمده ﷺ!) هغه ورځ چې ژوندي پورته كړي (دوى) الله ټول نو قسمونه به خوري دوى هغه (الله ) ته لكه چې قسمونه خوري دوى تاسې ته (په دنيا كې اې مسلمانانو) او ګمان به كوي (دوى) چې بېشكه دوى په يو ښه شي دي (يعني په فايده كې دي او په كومه ښه لاره درومي) واورئ ! خبردار شئ! چې بېشكه دوى هم دوى دي دروغجنان (چې له الله سره هم دروغ وايي).

# مكذبين

هغه كسان چې د دين حقانيت نه مني او د الله آيتونو ته دروواغ وايي او د اسلام دين هرڅه

[1] سورة المجادلة

دروا غ ګڼي داسې خلکو ته هم قران کريم دوزخ ياد کړی دی دا خلک به هم دوزخ ته ځي قرآن کريم په متعددو ځايونو کې ورته د دوزخ سزا ښودلې ده الله فرمايي:

وَالَّذِينَ كَفَرواْ وَكَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا أُولَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (39). 1

ترجمة: او هغه کسان چې کافران شوي دي او دروغ ګڼي آياتونه زمونږ هم دغه کسان صاحبان د اور (د دوزخ) دي هم دوی به په هغه (اور د دوزخ) کې همېشه وي .

وَالَّذِينَ كَفَرُواْ وَكَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ (86/10) 2

ترجمة: او هغه کسان چې کافران شوي دي او نسبت د دروغو ئې کړی دی آياتونو زمونږ ته هم دغه کسان دي صاحبان (ملګري د اور) د دوزخ.

وَالَّذِينَ كَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُواْ عَنْهَا أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (36). 3

ترجمة: او هغه کسان چې نسبت ئې د دروغو کړی آيتونو زمونږ ته او کبر (سرکشي کوي) له (قبلولود) هغې آيتونو هم دغه کسان صاحبان (ملګري) د اور (د دوزخ) دي هم دوی به په دغه اور کې تل وي.

إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُواْ عَنْهَا لاَ تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاء وَلاَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ (40) لَهُم مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِن فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ (41). 4

1 سورة البقرة
2 سورة المائدة
3 سورة الاعراف
4 سورة الاعراف

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې نسبت د دروغو کوي آيتونو زمونږ ته او تکبر کوي (له قبول) د هغو وبه نه پرانيستلی شي دوی ته ورونه د آسمان (چې پورته يوړل شي نيک عملونه او ارواح د دوی) او نه به داخل شي دوی جنت ته تر هغه پورې چې ننوزي اوښ په سوري د ستنې کې او هم داسې (لکه جزا د متکبرانو) جزا ورکوو مونږ مجرمانو (کافرانو) ته مقرر دی دوی ته له دوزخ څنې فرش او وي به د پاسه د دوی آغوستنې (پردې د اور) او هم داسې (لکه جزا د دې خلقو) جزا ورکوو مونږ ظالمانو ته.

وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَلِقَاء الْآخِرَةِ فَأُوْلَئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُونَ (16).[1]

ترجمة: او هرڅه هغه کسان چې کافران شوي دي او دروغجن ئې شمېرلي دي آيتونه (د قرآن) زمونږ او (کافران دي) په ملاقات د آخرت پس دغه کسان په عذاب کې حاضر کړل شوي دي .

وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِ آيَاتُنَا وَلَّى مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا كَأَنَّ فِي أُذُنَيْهِ وَقْرًا فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (7).[2]

ترجمة: او کله چې ولوستل شي په ده باندې آيتونه (د قرآن) زمونږ نو وګرځوي ترې مخ حال دا چې متکبر غاړه غړوونکی وي داسې چې ګواکې له سره ئې نه دي آورېدلي (دا آيتونه) ګواکې په دواړو غوږونو د ده کې دروندوالی کوڼوالی دی پس زېری يعني خبر ورکړه ته هغه ته په عذاب دردناک سره .

---

[1] سورة الروم
[2] سورة لقمان

يَوْمَ يُدَعُّونَ إِلَى نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا (13) هَذِهِ النَّارُ الَّتِي كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ (14)
أَفَسِحْرٌ هَذَا أَمْ أَنتُمْ لَا تُبْصِرُونَ (15) اصْلَوْهَا فَاصْبِرُوا أَوْ لَا تَصْبِرُوا سَوَاء
عَلَيْكُمْ إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (16). [1]

ترجمة: هغه ورځ چې پوري وهل شي دوی اور د دوزخ ته په پوري وهلو سره (وبه ويل شي دوی ته) دا دی هغه اور چې وئ تاسې چې په دې به مو دروغ ويل (يعني انکار به مو تري کاوه) آيا پس سحر دی دا (عذاب چې وينئ يې تاسو) که يئ تاسو چې نه ئې وينئ ځئ ننوځئ په دغه دوزخ کې پس صبر وکړئ تاسې يا مه کوئ صبر برابر دي (دغه دواړه کارونه) په تاسې باندې بېشکه هم دا خبره ده چې جزا درکوله شي تاسې ته د هغو (کارونو) چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنيا کې) .

وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ خَالِدِينَ فِيهَا وَبِئْسَ الْمَصِيرُ
(10). 2

ترجمة: او هغه کسان چې کافران شوي دي او نسبت د دروغو ئې کړی دی آياتونو زمونږ ته هغوی دي ياران ملګري د دوزخ (چې اصلا د هم دوی لپاره جوړ شوی دی) .

ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ (51) لَآكِلُونَ مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ (52) فَمَالِؤُونَ
مِنْهَا الْبُطُونَ (53) فَشَارِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيمِ (54) فَشَارِبُونَ شُرْبَ الْهِيمِ
(55)هَذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّينِ (56) . 3

ترجمة: بيا به بېشکه تاسې ای ګمراهانو دروغ ويونکيو خامخا خوړونکی به يئ (په دوزخ کې) له ونې د زقوم څخه پس ډک کوونکي به يئ له هغې (ونې) څخه دګيډو خپلو لره . پس څښونکي به يئ

[1] سورة الطور
[2] سورة التغابن
[3] سورة الواقعة

تاسې په هغه (زقوم خوړلي شوي) باندې له اوبو سوځوونکيو څخه پس څښونکی به يئ (په شان) د څښلو د اوښانو ډيرو تږو او دا د جزاء په ورځ د دوی مېلمستيا ده .

وَأَمَّا إِن كَانَ مِنَ الْمُكَذِّبِينَ الضَّالِّينَ (92) فَنُزُلٌ مِّنْ حَمِيمٍ (93) وَتَصْلِيَةُ جَحِيمٍ (94) .[1]

ترجمة: او که چېرې وي (دغه مړی) له دروغ ويونکيو ګمراهانو څخه نو مېلمستيا ده (ده ته) له سوزوونکيو اوبو څخه او ننه ايستل دي په اور (د دوزخ) کې .

## د اخرت نه منکر

هغه کسان چې د آخرت نه انکار کوي سره ددې چې په آخرت باندې او د هغه په اثبات باندې قرآني دلائل او نبوي روايات موجود دي خو بيا هم وربانديې ايمان نه لري ددې کسانو لپاره هم قرآن کريم دوزخ ياد کړی دی او په متعددو ځايونو کې ورته ياد شوی دی الله فرمايي :

وأَنَّ الَّذِينَ لاَ يُؤْمِنُونَ بِالآخِرَةِ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا (10).[2]

ترجمة: او بېشکه هغه کسان چې په آخرت باندې ايمان نه راوړي تيار کړی دی د دوی لپاره مونږ عذاب دردناک.

بَلْ كَذَّبُوا بِالسَّاعَةِ وَأَعْتَدْنَا لِمَن كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيرًا (11) إِذَا رَأَتْهُم مِّن مَّكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا (12) وَإِذَا أُلْقُوا مِنْهَا مَكَانًا ضَيِّقًا مُقَرَّنِينَ دَعَوْا هُنَالِكَ ثُبُورًا (13) لَا تَدْعُوا الْيَوْمَ ثُبُورًا وَاحِدًا وَادْعُوا ثُبُورًا كَثِيرًا (14).[3]

---

1 سورة الواقعة
2 سورة الاسراء (بني اسرائيل)
3 سورة الفرقان

ترجمة: بلکه نسبت د دروغو کوي (کفار) په قيامت باندې (چې نشته) او تيار کړی دی مونږ د پاره د هغه چا چې نسبت ددروغو کوي په قيامت باندې سخت اور (د دوزخ) کله چې ويني (دغه اور) دوی له هغه ځای لرې نو آوري به دوی (دغه اور) لره خوټکېدل له ډېره قهره او غورېدل (له ډېره غضبه) او کله چې وغورځولی شي (کفار) له دوزخ نه په ځای تنګ کې په دغه حال کې چې (څو تنه يو ځای سره نژدې په ځنځيرونو) سره تړلی شوي وي نو په دغه ځای بولي دوی هلاک (خپل) مه غواړئ مه بولئ تاسې نن ورځ هلاک يو او وبولئ تاسې هلاکونه ډېر (ځکه چې عذاب مو ډېر اقسام لري) .

إِنَّ الَّذِينَ لاَ يَرْجُونَ لِقَاءنَا وَرَضُواْ بِالْحَياةِ الدُّنْيَا وَاطْمَأَنُّواْ بِهَا وَالَّذِينَ هُمْ عَنْ آيَاتِنَا غَافِلُونَ (7) أُوْلَئِكَ مَأْوَاهُمُ النُّارُ بِمَا كَانُواْ يَكْسِبُونَ (8).[1]

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې نه لري اميد د ملاقات زمونږ (او له آخرته منکران دي) او خوښ دي په دې ژوند لږ خسيس او آرام ئې نيولی (راضي شوي دي) په دې (ژوند پورې او له حشره غافلان دي) او هغه کسان چې دوی له آيتونو (دلائلو د قدرت) زمونږ نه غافلان دي دغه مذکوره کسان ځای د ورتلو د دوی اور (د دوزخ) دی په سبب د هغه چې وو دوی چې کول به يې .

وَإِن تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ أَئِذَا كُنَّا تُرَابًا أَئِنَّا لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ أُوْلَئِكَ الَّذِينَ كَفَرُواْ بِرَبِّهِمْ وَأُوْلَئِكَ الأَغْلاَلُ فِي أَعْنَاقِهِمْ وَأُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدونَ (5).[2]

ترجمة: او که تعجب لرې (اې محمده ﷺ! له دې نه چې دوی تا نه مني) نو لا عجيبه ده (دا) خبره د دوی چې (وايي) آيا کله چې شو مونږ خاورې آيا شو به مونږ خامخا په پيدائښت نوي کې دوی همغه

[1] سورة يونس
[2] سورة الرعد

کسان دي چې کافران شوي دي په رب خپل او هم دغه ګمراهان دي چې د اور طوقونه به وي (په قيامت کې) په غاړو د دوی کې او دغه (خاوندان د طوقونو) صاحبان (ملګري) د اور دي دوی به په دې اور کې همېشه وي.

فَذُوقُوا بِمَا نَسِيتُمْ لِقَاء يَوْمِكُمْ هَذَا إِنَّا نَسِينَاكُمْ وَذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (14). 1

ترجمة: پس و څکئ تاسې (دا عذاب) په سبب د دې چې هېر کړی وو تاسې ملاقات د ورځې ستاسې چې دا دی بېشکه چې مونږ به هم هېر کړو تاسې او وڅکئ تاسې عذاب دائمي په سبب د هغه (کفر او تکذيب) چې وئ تاسې چې کاوه به مو (په دنيا کې) .

أُولَئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا (105) ذَلِكَ جَزَاؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوا وَاتَّخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا (106). 2

ترجمة: دغه کسان (چې بېرته ياد شول) هغه کسان دي چې کافران شوي دي په آياتونو (د قدرت) د رب خپل (په دنيا کې) او په لقاء د دغه (الله په آخرت کې) پس باطل خراب شول عملونه د دوی پس وبه نه دروو د پاره د دوی په ورځ د قيامت کې تله (ځکه چې حسنات نه لري يا تله د نفعې به دوی ته نه دروو) (کار) دغه (دی چې د دوی اعمال باطل شول) جزا د دوی ده دوزخ په سبب د دې چې کافران شوي وو دوی او نيولي وو دوی آيتونه (د قدرت) زما او رسولان زما مسخره.

وَيَقُولُونَ مَتَى هَذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ (38) لَوْ يَعْلَمُ الَّذِينَ كَفَرُوا حِينَ لَا يَكُفُّونَ عَن وُجُوهِهِمُ النَّارَ وَلَا عَن ظُهُورِهِمْ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ (39). 1

---

1 **سورة السجدة**

2 **سورة كهف**

ترجمة: او وایي (دا کفار) کله به وي دغه وعده (د راتلو د عذاب یا د قیامت) که چېرې یئ تاسې صادقان رښتیني (په خپله دغه وینا کې) که پوهېدلي وی هغه کسان چې کافران شوي دي هغه وخت چې نه به شي منع کولی له مخونو خپلو اور (د دوزخ) او نه له شاګانو خپلو (ځکه چې اور به ترې چاپېر وي) او نه به له دوی سره مرسته (مدد) وکړل شي.

إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ زَيَّنَّا لَهُمْ أَعْمَالَهُمْ فَهُمْ يَعْمَهُونَ (4) أُوْلَئِكَ الَّذِينَ لَهُمْ سُوءُ الْعَذَابِ وَهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْأَخْسَرُونَ (5). [2]

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې نه راوړي ایمان په (ورځې) آخرې (چې قیامت دی) ښایسته کړي دي مونږ دوی ته عملونه (بد) د دوی پس دوی حیران سرګردانه دي (په دغو بدو اعمالو خپلو کې) دا هم هغه کسان دي چې مقرر دی دوی ته ډیر بد عذاب (په دنیا کې) او دوی په آخرت کې هم دوی زیانکاران دي.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ وَلِقَائِهِ أُوْلَئِكَ يَئِسُوا مِن رَّحْمَتِي وَأُوْلَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (23). [3]

ترجمة: او هغه کسان چې کافران شوي دي په آیاتونو د الله او په ملاقات د دغه (الله) دغه کسان نا امیده دي له رحمت (جنت) زما او دغه کسان مقرر دی دوی ته عذاب ډیر دردناک.

وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَلِقَاء الْآخِرَةِ فَأُوْلَئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُونَ (16). [4]

---

1 سورة الانبياء
2 سورة النمل
3 سورة العنكبوت
4 سورة الروم

ترجمة: او هرڅه هغه کسان چې کافران شوي دي او دروغجن ئې شمېرلي دي آيتونه (د قرآن) زمونږ او (کافران دي) په ملاقات د آخرت پس دغه کسان په عذاب کې حاضر کړل شوي دي .

فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَلَا ضَرًّا وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّتِي كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ (42). [1]

ترجمة: (نو الله فرمايي) پس نن ورځ نه لري اختيار ځينې ستاسې (معبودان) د پاره د ځينو نورو (عابدانو) نه د نفعې او نه د ضرر او وبه وايو مونږ د پاره د هغو کافرانو چې ظلم ئې کړی دی و څکئ تاسې عذاب د اور هغه چې وئ تاسې چې د دې (اور) تکذيب مو کاوه .

وَإِذَا قِيلَ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيهَا قُلْتُم مَّا نَدْرِي مَا السَّاعَةُ إِن نَّظُنُّ إِلَّا ظَنًّا وَمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِينَ (32) وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِؤُون (33)وَقِيلَ الْيَوْمَ نَنسَاكُمْ كَمَا نَسِيتُمْ لِقَاء يَوْمِكُمْ هَذَا وَمَأْوَاكُمْ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن نَّاصِرِينَ (34)ذَلِكُم بِأَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا وَغَرَّتْكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُونَ مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ (35). [2]

ترجمة: او هر کله چې وبه ويل شو (تاسو ته اې کفارو چې) بېشکه چې وعده د الله حقه ده (په ژوندون سره) او قيامت نشته شک په (راتلو) د هغه کې نو وبه ويل تاسې نه پوهېږو چې څه شی دی قيامت گمان نه کوو مگر گمان لږ او نه يو مونږ يقين راوړونکي (په راتلو د قيامت) او ښکاره به شي (په قيامت کې ) دوی ته نا کاره والی (بدې جزاوې) د هغو (بدو اعمالو) چې کړي وو دوی (په دنيا کې) او چاپېر (نازل) به شي په دوی عذاب هغه چې وو دوی چې په هغه پورې به يې مسخرې کولې او وبه ويل شي چې نن ورځ به هېر کړو (پرې به ږدو) مونږ تاسې (په دوزخ کې)

---

[1] سورة سبا
[2] سورة الجاثية

لکه چې هېږ کړی وو تاسې ملاقات د ورځې ستاسې دغه (چې ورځ د قیامت ده) او ځای ستاسې اور دی او نشته تاسو ته هېڅوک له مددګارانو (چې مو تربې خلاص کړي) دغه (تعذیب له دې سببه دی) چې بېشکه تاسې نیولي مو وو آیتونه (د قرآن) د ﷲ په ټوکو سره او مغرور کړي وئ تاسې دغه ژوندن لږ خسیس نو نن ورځ وبه نه ایستلی شي دوی له دوزخه او نه به د دوی عذر قبول (او توبه ومنله) شي.

يَسْأَلُونَ أَيَّانَ يَوْمُ الدِّينِ (12) يَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ يُفْتَنُونَ (13). [1]

ترجمة: سوال کوي منکران (تمسخراً له محمدﷺ نه) چې کله به وي ورځ د انصاف؟ هغه ورځ چې دوی په اور باندې معذب شي .

وَكَانُوا يَقُولُونَ أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَئِنَّا لَمَبْعُوثُونَ (47) أَوَ آبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ (48) قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ (49) لَمَجْمُوعُونَ إِلَى مِيقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ (50).[2]

ترجمة: او وو دوی چې ویل به یې آیا کله چې مړه شومونږ او شو خاورې او هډوکي آیا بېشکه مونږ به بیا خامخا را پورته کړل شو او پلرونه زمونږ ړومبني هم (به بیا ژوندي را پورته کیږي؟ بلکه نه کېږو!) ووایه ته (اې محمدهﷺ! دوی ته) بېشکه چې ړومبني (خلق) او وروستني (خلق) به خامخا ګرد به ټول کړل شي وقت د ورځې معلومې ته (چې قیامت دی)

فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءلُونَ (40) عَنِ الْمُجْرِمِينَ (41) مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ (42) قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ (43) وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِينَ (44) وَكُنَّا نَخُوضُ مَعَ الْخَائِضِينَ (45) وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ (46) حَتَّى أَتَانَا الْيَقِينُ (47). [1]

---

[1] سورة الذاريات
[2] سورة الواقعة

ترجمة: (اصحاب اليمين به وي) په جنتونو کې پوښتنې به سره کوي له حاله د مجرمانو (ګنهګارانو) نو وبه وايي مؤمنان منکرانو ته داسې چې (څه شي داخل کړي يئ تاسې (اې منکرانو) په دوزخ کې و به وايي مجرمان په ځواب د مؤمنانو کې چې) نه وو مونږ (په دنيا کې) له لمونځ کوونکيو څخه او نه وو مونږ چې طعام خواړه مو ورکړي وی مسکينانو ته او وو به مونږ چې ننوتلو شغل مو کاوه په (باطلو) خبرو کې سره له ډېرو خبرو کوونکيو او وو به مونږ (په دنيا کې) چې دروا‌غ به مو ويل په ورځ د جزاء (قيامت) باندې تر هغه پورې چې راغله مونږ ته (هغه) يقيني خبره (مرګ)

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ (10) الَّذِينَ يُكَذِّبُونَ بِيَوْمِ الدِّينِ (11) وَمَا يُكَذِّبُ بِهِ إِلَّا كُلُّ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ (12) إِذَا تُتْلَى عَلَيْهِ آيَاتُنَا قَالَ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ (13) كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ (14) كَلَّا إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ (15) ثُمَّ إِنَّهُمْ لَصَالُو الْجَحِيمِ (16) . 2

ترجمة: افسوس هلاک خرابي يا کنده د دوزخ ده په دغې ورځې کې دروغ ويونکيو لره هغه کسان چې دروغ وائي په ورځې د انصاف جزاء باندې کله چې ولوستل شي په ده باندې آيتونه (د قرآن) زمونږ نو وائي (جهلاً او عناداً چې دا) چټي (بيکاره) قصې دي د پخوانيو نه ده داسې (لکه چې وايي منکران) بلکه زنګ اچولی دی پر زړونو د دوی هغو ګناهونو چې ؤ دوی چې کول به يې رښتيا ده چې بېشکه دوی به له (لقاء د) رب خپله په دغې ورځې (د قيامت کې) خامخا په حجاب کې وي (نه به ويني الله ) پس بېشکه دوی چې دي خامخا ننوتونکي دي دوزخ ته.

---

1 سورة المدثر
2 سورة المطففين

# د قرآن کريم نه منکر

هغه کسان چې د قرآن کريم او د هغه له حقانيت څخه انکار کوي او هغه کسان چې قرآن کريم نه مني او ايمان وربانديې نه راوړي د هغه کسانو لپاره هم قرآن کريم د دوزخ عذاب ياد کړی دی الله فرمايي :

وَإِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَى عَبْدِنَا فَأْتُواْ بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِ وَادْعُواْ شُهَدَاءكُم مِّن دُونِ اللّهِ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ (23) فَإِن لَّمْ تَفْعَلُواْ وَلَن تَفْعَلُواْ فَاتَّقُواْ النَّارَ الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ (24).[1]

ترجمة: او که چېرې يئ تاسې په شک کې له هغه قرآنه چې ټوټه ټوټه نازل کړی دی مونږ په بنده خپل (محمدﷺ باندې) نو راوړئ تاسې يو سورت په شان د ده! او را وبولئ (اې مشرکانو!) مددګاران خپل بې له الله څخه که يئ تاسې رښتيا ويونکي (په دې دعوی کې چې دا د انسان کلام دی) پس که ونه کړی شو تاسو (دا کار) او له سره به يې ونه کړلی شئ پس وساتئ تاسې (ځانونه) له هغه اوره چې خس (خاشاک) د هغه بنيادمان او تيږې دي چې تيار کړل شوی دی (دا اور) لپاره د کافرانو.

وَقُلِ الْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ فَمَن شَاء فَلْيُؤْمِن وَمَن شَاء فَلْيَكْفُرْ إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلظَّالِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا وَإِن يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاء كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ وَسَاءتْ مُرْتَفَقًا (29).[2]

ترجمة: ووايه (اې محمده ﷺ! دوی ته اسلام قرآن) حق دی له رب ستاسې پس هرڅوک چې اراده (د ايمان) وکړي نو ايمان دې راوړي! او هرڅوک چې اراده (د کفر) وکړي نو کافر د شي بېشکه چې

---

1 سورة البقرة
2 سورة الكهف

مونږ تيار کړی مو دی لپاره د ظالمانو (کافرانو داسې) اور چې چاپېر شوی دی له دوی پردې د هغه (چې هغه پردې به هم د اور وي) او که فرياد وکړي (دوی له تندې) نو فرياد به يې واخيستی شي (په ورکولو د داسې) اوبو (سره) لکه زوې (يا د تېلو خټې) چې وريتوي به مخونه بد څيز د څښلو دي (دغه زوې) او بد دی (دغه اور ځای د آرام يا) له وجې د انتفاع.

كَذَلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنبَاء مَا قَدْ سَبَقَ وَقَدْ آتَيْنَاكَ مِن لَّدُنَّا ذِكْرًا (99) مَنْ أَعْرَضَ عَنْهُ فَإِنَّهُ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وِزْرًا (100)خَالِدِينَ فِيهِ وَسَاء لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حِمْلًا (101) يَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا (102).[1]

ترجمة: هم داسې (لکه چې د موسی قصه مو کړه تاته) قصې کوو پر تا (يعني تاته) له اخبارو د هغو امورو چې په تحقيق پخوا تېر شوي دي (له پخوانيو امتونو) او په تحقيق درکړی دی مونږ تاته خاص له جانبه خپله ذکر (پند چې قرآن دی) هرڅوک چې مخ وګرځوي له دغه (قرآن يا له الله نه په نه ايمان راوړلو سره) پس بېشکه دی به بار کړي (په ځان خپل) په ورځ د قيامت کې لوی بار (د عذاب) چې تل به وي په دغه (عذاب د لوی بار) کې او بد دی دوی ته په ورځ د قيامت کې له جهته د بارولو (عذاب د ګناه د دوی) په هغه ورځ کې چې وپوکل شي (دوهم ځلي) په شپېلی کې او را جمع به کړو مجرمان په دغه ورځ شين سترګي.

وَالَّذِينَ سَعَوْا فِي آيَاتِنَا مُعَاجِزِينَ أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ (51).[2]

ترجمة: او هغه کسان چې کوشش کوي په (بطلان د) آيتونو زمونږ کې په داسې حال کې چې عاجز

---

[1] سورة طه
[2] سورة الحج

کوونکي زمونږ وي (د دوی په خپل ګومان) هم دغه کسان ملګري د دوزخ دي (چې تل به پکې سوزي) .

فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَلَا ضَرًّا وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّتِي كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ (42) وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالُوا مَا هَذَا إِلَّا رَجُلٌ يُرِيدُ أَن يَصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُكُمْ وَقَالُوا مَا هَذَا إِلَّا إِفْكٌ مُّفْتَرًى وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلْحَقِّ لَمَّا جَاءهُمْ إِنْ هَذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ (43).[1]

ترجمة: (نو الله فرمايي) پس نن ورځ نه لري اختيار ځينې ستاسې (معبودان) د پاره د ځينو نورو (عابدانو) نه د نفعې او نه د ضرر او وبه وايو مونږ د پاره د هغو کافرانو چې ظلم ئې کړی دی و څکئ تاسې عذاب د اور هغه چې وئ تاسې چې د دې (اور) تکذيب مو کاوه او کله چې ولوستل شي پر دوی آيتونه زمونږ په دې حال کې چې واضح دي نو وائي نه دی دغه (محمدﷺ) مګر يو داسې سړی دی چې اراده لري د دې چې منع کړي تاسې له هغه شي څخه چې وو (داسې) چې عبادت به کاوه پلرونو ستاسې او وايي دغه (منکران) چې نه دی دغه (قرآن) مګر يو دروغ دي له خپله ځانه جوړ کړل شوي او وايي هغه (منکران د مکې) چې کافران شوي دي حق (قرآن، اسلام او نبوت) ته کله چې راغی دوی ته نه دی دغه مګر خو دی سحر کوډې ښکاره.

إِذَا تُتْلَى عَلَيْهِ آيَاتُنَا قَالَ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ (13) كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ (14) كَلَّا إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ (15) ثُمَّ إِنَّهُمْ لَصَالُو الْجَحِيمِ (16) ثُمَّ يُقَالُ هَذَا الَّذِي كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ (17).[2]

ترجمة: کله چې ولوستل شي په ده باندې آيتونه (د قرآن) زمونږ نو وائي (جهلاً او عناداً چې دا) چټي (بيکاره) قصې دي د پخوانيو نه ده داسې

---

[1] سورة سبا
[2] سورة المطففين

(لکه چې وايي منکران) بلکه زنګ اچولی دی پر زړونو د دوی هغو ګناهونو چې ؤ دوی چې کول به يې رښتيا ده چې بېشکه دوی به له (لقاء د) رب خپله په دغې ورځې (د قيامت کې) خامخا په حجاب کې وي (نه به ويني الله ) پس بېشکه دوی چې دي خامخا ننوتونکي دي دوزخ ته بيا به وويل شي (دوی ته چې) دا هغه (عذاب) دی چې وئ تاسې چې هغه به مو دروغ ګاڼه انکار به موې ترې کاوه له سره نه ده داسې .

وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا هُمْ أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ (19) عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌ (20). [1]

ترجمة: او هغه کسان چې کافران شوي دي په آيتونو زمونږ هم دوی اصحاب خاوندان د کيڼ طرف د بدې برخې دي وي به پر دوی باندې اور سرپوښ کړل شوی.

---

[1] سورة البلد

## په الله او رسول ایمان نه راوړونکی

هغه کسان چې په الله او یا د هغه په رسول او یا په دواړو باندې ایمان نه راوړي او پدې باندې یقین نه کوي او دوی حق نه مني د هغوی لپاره هم قرآن کریم دوزخ یاد کړی دی الله فرمایي :

وَمَن لَّمْ يُؤْمِن بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ فَإِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ سَعِيرًا (13).[1]

ترجمة : او هر هغه چې ایمان ئې نه وي راوړی په الله او رسول د دغه (الله ) نو بېشکه مونږ تیار کړی دی کافرانو ته تود اور (د دوزخ) .

## مخالفت کونکي

هغه کسان چې د الله او یا د هغه د رسول او یا ددواړو مخالفت کوي او د هغوی په هدایاتو باندې عمل نه کوي دا کسان به هم دوزخ ته ځي الله فرمایي :

وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءتْ مَصِيرًا (115). [2]

ترجمة : او هرڅوک چې مخالفت کوي له رسوله وروسته له هغه چې ښکاره شوه ده ته سمه لاره او تابع شي (لاړ شي) بې له لارې د مؤمنانو نو وبه ګرځوو مونږ دی هغه لوري ته چې دی ور ګرځېدلی دی او داخل به کړو مونږ دی دوزخ ته او بد ځای د ورتلو دی (دا دوزخ) .

أَلَمْ يَعْلَمُواْ أَنَّهُ مَن يُحَادِدِ اللّهَ وَرَسُولَهُ فَأَنَّ لَهُ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدًا فِيهَا ذَلِكَ الْخِزْيُ الْعَظِيمُ (63). [1]

---

[1] **سورة الفتح**
[2] **سورة النساء**

ترجمة: آيا نه دي پوه شوي دوی په دې چې بېشکه شان دادی هرڅوک چې مخالفت کوي د الله او (مخالفت کوي) د رسول د الله پس بېشکه مقرر دی ده ته اور د دوزخ حال دا چې همېشه به وي دی په دغه دوزخ کې او هم دغه (همېشه والی په دوزخ کې) رسوائي ده ډېره لويه.

وَلَوْلَا أَن كَتَبَ اللَّهُ عَلَيْهِمُ الْجَلَاء لَعَذَّبَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابُ النَّارِ (3) ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَمَن يُشَاقِّ اللَّهَ فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ (4). [2]

ترجمة: او که نه وی ليکلی (مقرر کړی) الله په دوی باندې وتل (فرار کول) له وطنه نو خامخا په عذاب کړی به وو (الله) دوی لره په دنيا کې (په وژلو او بندي کولو سره) او دوی لره دی په آخرت کې عذاب د اور دغه (تعذيب د دوی) په سبب ددې وو چې بېشکه وو دوی چې مخالفت به يې کاوه له الله او له رسول د دغه (الله) سره او هر هغه چې مخالفت کوي له الله څخه نو بېشکه الله سخت دی عذاب (د ده په دنيوي قتل نفي او اسارت او آخروي عقوبت).

[1] سورة التوبة
[2] سورة الحشر

# د پيغمبرانو نه انكار كوونكى

هغه كس چې د پيغمبرانو څخه انكار كوي او يا ځينې پيغمبران مني او ځينې نه مني د هغوى لپاره هم قرآن كريم دوزخ ياد كړى دى الله فرمايي :

إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللّهِ وَرُسُلِهِ وَيُرِيدُونَ أَن يُفَرِّقُواْ بَيْنَ اللّهِ وَرُسُلِهِ وَيقُولُونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَنَكْفُرُ بِبَعْضٍ وَيُرِيدُونَ أَن يَتَّخِذُواْ بَيْنَ ذَلِكَ سَبِيلاً (150) أُوْلَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ حَقًّا وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا (151). [1]

ترجمة : بېشكه هغه كسان چې كافران (منكران) كيږي پر الله او پر رسولانو د الله او اراده لري (غواړي) دوى چې تفريق (بېلتون) وكړي په مينځ د الله او د رسولانو د الله او وايي دوى چې مونږ ايمان راوړو پر ځينو او كافران (منكران) كيږو پر ځينو (نورو رسولانو) او اراده لري (غواړي) دوى چې ونيسي په مينځ د دې (كفر او اسلام كې) يوه لاره دغه (تفريق كوونكي) هم دوى كافران دي (په كمال د كفر او) په حقه سره او تيار كړى دى مونږ له پاره د كافرانو عذاب ډير سپكوونكى (د دوزخ).

[1] سورة النساء

## د کتاب الله ځینې برخې نه منونکی

هغه کس چې د الله ځینې احکام مني او ځینې نه انکار کوي او نه یې مني ددې کسانو لپاره هم قرآن کریم دوزخ یاد کړی دی الله فرمایي :

أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ فَمَا جَزَاء مَن يَفْعَلُ ذَلِكَ مِنكُمْ إِلاَّ خِزْيٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يُرَدُّونَ إِلَى أَشَدِّ الْعَذَابِ وَمَا اللّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ (85) . [1]

ترجمة : آیا تاسې ایمان راوړئ په ځینې کتاب او کفر کوئ په ځینې نورو باندې پس نه ده سزا د هغه چاچې کوي دا (کارونه) له تاسې څخه مګر خو رسوایي ده په ژوند د دنیا کې او په ورځ د قیامت کې ګرځول کیږي دوی ډېر سخت عذاب د (دوزخ) ته او نه دی الله غافل له هغه څه چې کوئ یې تاسې.

## په رسولانو پورې ټوقې کوونکی

هغه کسان چې د الله په رسول پسې ټوقې کوي او په هغه مسخرې کوي او په هغه ملنډې وهي او د هغه سپکاوی کوي ددې کسانو لپاره هم دوزخ دی الله فرمایي :

ذَلِكَ جَزَاؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوا وَاتَّخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا (106) . [2]

ترجمة : (کار) دغه (دی چې اعمال د دوی باطل شول) جزا د دوی ده دوزخ په سبب د دې چې کافران شوي وو دوی او نیولي وو دوی آیاتونه (د قدرت) زما او رسولان زما مسخره.

---

[1] سورة البقرة
[2] سورة الكهف

# په قرآن کریم پورې ټوقې کوونکی

هغه کسان چې د قرآن په آیتونو پورې ټوقې کوي او په قرآن کریم پورې مسخرې کوي دا کسان به هم دوزخ ته ځي الله فرمايي :

وَإِذَا عَلِمَ مِنْ آيَاتِنَا شَيْئًا اتَّخَذَهَا هُزُوًا أُوْلَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ (9) مِن وَرَائِهِمْ جَهَنَّمُ وَلَا يُغْنِي عَنْهُم مَّا كَسَبُوا شَيْئًا وَلَا مَا اتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ أَوْلِيَاء وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ (10). [1]

ترجمة : او کله چې پوه شي له آیتونو (د قرآن) زمونږ پر یوه څه شي نو نیسي ئې په ټوکو او مسخرو دغه (دروغجنان متکبران مسخره کوونکي) شته دوی ته عذاب سپکوونکی وروسته له (مرګه) د دوی دوزخ دی او دفعه به نه کړي له دوی نه هغه څیز چې کسب کړی وي دوی هېڅ څیز (له عذابه) او نه (به دفعه کوي) هغه بتان چې نیولي دي دوی بې له الله دوستان (معبودان) او شته دوی ته عذاب ډېر لوی (د دوزخ) .

وَقِيلَ الْيَوْمَ نَنسَاكُمْ كَمَا نَسِيتُمْ لِقَاء يَوْمِكُمْ هَذَا وَمَأْوَاكُمْ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن نَّاصِرِينَ (34) ذَلِكُم بِأَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا وَغَرَّتْكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُونَ مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ (35). [2]

ترجمة : او وبه ویل شي چې نن ورځ به هېر کړو (پرې به ږدو) مونږ تاسې (په دوزخ کې) لکه چې هېر کړی وو تاسې ملاقات د ورځې ستاسې دغه (چې ورځ د قیامت ده) او ځای ستاسې اور دی او نشته تاسو ته هېڅوک له مددګارانو (چې مو ترې خلاص کړي) دغه (تعذیب له دې سببه دی) چې بېشکه تاسې نیولي مو وو آیتونه (د قرآن) د الله په ټوکو سره او مغرور کړي وئ تاسې دغه ژوندون لږ

---

[1] سورة الجاثية
[2] سورة الجاثية

خسیس نو نن ورځ وبه نه ایستلی شي دوی له دوزخه او نه به د دوی عذر قبول (او توبه ومنله) شي.

## په دین پورې ټوقې کونکی

هغه کسان چې د الله په دین پورې ټوقې کوي او دا یوه مسخره ګرځوي ددې کسانو لپاره هم دوزخ دی الله فرمایي:

وَذَرِ الَّذِينَ اتَّخَذُواْ دِينَهُمْ لَعِبًا وَلَهْوًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا وَذَكِّرْ بِهِ أَن تُبْسَلَ نَفْسٌ بِمَا كَسَبَتْ لَيْسَ لَهَا مِن دُونِ اللّهِ وَلِيٌّ وَلاَ شَفِيعٌ وَإِن تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لاَّ يُؤْخَذْ مِنْهَا أُوْلَئِكَ الَّذِينَ أُبْسِلُواْ بِمَا كَسَبُواْ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُواْ يَكْفُرُونَ (70). [1]

ترجمة: او پرېږده ته هغه کسان چې ګرځولی دی دوی دین خپل لوبې او عبث (چې پرې مسخرې کوي) او غره کړي (غولولي) دي دوی لره حیات دنیوي (ژوند لنډ خسیس نو ځکه منکران شوي دي له حشره) او پند ورکوه ته په دغه (قرآن سره خلقو ته) څو (ونه) سپارل شي (هلاک ته) هېڅ نفس په سبب د هغه عمل چې کړی ئې وي حال دا چې نه وي دغه نفس ته بې له الله نه کوم ولي (دوست مانع د آفت په دنیا کې) او نه شفاعتګر (دافع د مصیبت په عقبا کې) او که فدیه ورکړي (دانفس) هر قسم فدیه نو وابه نه خیستی شي دا (فدیه یعنې قبوله به نه شي له دې نفس څخه) دا (مذکورین چې دین لهو او لعب نیولی دی) هغه کسان دي چې سپارلي شوي دي (هلاک ته) په سبب د هغو کارونو چې کړي دي دوی شته دوی لره څښل له ډېرو ګرمو اوبو او عذاب دی دردناک په سبب د دې چې وو دوی چې کافران کېدل.

---

[1] سورة الانعام

**وَنَادَى أَصْحَابُ النَّارِ أَصْحَابَ الْجَنَّةِ أَنْ أَفِيضُواْ عَلَيْنَا مِنَ الْمَاء أَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّهُ قَالُواْ إِنَّ اللّهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى الْكَافِرِينَ (50) الَّذِينَ اتَّخَذُواْ دِينَهُمْ لَهْوًا وَلَعِبًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا فَالْيَوْمَ نَنسَاهُمْ كَمَا نَسُواْ لِقَاء يَوْمِهِمْ هَذَا وَمَا كَانُواْ بِآيَاتِنَا يَجْحَدُونَ (51) .** [1]

ترجمة: او غږ به وکړي صاحبان د اور صاحبانو د جنت ته داسې چې را توی کړئ تاسې پر مونږ باندې له اوبو نه یا (را واچوئ) له هغو شیونو چې روزي کړي دي تاسې ته الله وبه وایي جنتیان (د دوزخیانو په ځواب کې) چې بېشکه الله حرام کړي دي دا دواړه (خوراک او څښاک) پر کافرانو هغه کافران چې نیولی دی دوی دین خپل تماشا او لوبې او غولولي وو دوی ژوندانه لږ خسیس نو نن به هېروو (پرېږدو) مونږ دوی لکه چې هېر کړی وو دوی ملاقات د ورځې خپلې چې دغه ده او (لکه چې) وو دوی چې په آیتونو زمونږ به یې انکار کاوه (چې الله نه دي را لېږلي).

**وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا أُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ (6) وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِ آيَاتُنَا وَلَّى مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا كَأَنَّ فِي أُذُنَيْهِ وَقْرًا فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (7).** 2

ترجمة: او (ځینې) له خلقو څخه هغه څوک دي چې پیري اخلي عبثې خبرې (اړوونکې له حق څخه) د پاره د دې چې وښویوي (خلق) له لارې د الله نه بې له علمه (په عاقبت د فعل خپل) او چې ونیسي دا (لاره یا آیتونه) په ټوکو مسخرو ، دغه (کسان) شته دوی ته عذاب سپکوونکی او کله چې ولوستل شي په ده باندې آیتونه (د قرآن) زمونږ نو وګرځوي ترې مخ حال دا چې متکبر غاړه غړوونکی وي داسې چې ګواکي له سره ئې نه دي آورېدلي (دا آیتونه) ګواکي په دواړو غوږونو د ده کې

---

[1] سورة الاعراف

[2] سورة لقمان

دروندوالی کونې والی دی پس زېری یعني خبر ورکړه ته هغه ته په عذاب دردناک سره .

وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِؤُون (33) وَقِيلَ الْيَوْمَ نَنسَاكُمْ كَمَا نَسِيتُمْ لِقَاء يَوْمِكُمْ هَذَا وَمَأْوَاكُمْ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن نَّاصِرِينَ (34). [1]

ترجمة : او وبه ویل شي چې نن ورځ به هېر کړو (پرې به ږدو) مونږ تاسې (په دوزخ کې) لکه چې هېر کړی وو تاسې ملاقات د ورځې ستاسې دغه (چې ورځ د قیامت ده) او ځای ستاسې اور دی او نشته تاسو ته هېڅوک له مددګارانو (چې مو تری خلاص کړي) .

## عیاشان

هغه کس چې عیاشي کوي او په خپل عیش کې الله ، دین او آخرت هېر کړي دې کسانو ته په عربي کې مترفین ویل کیږي دې کسانو ته هم دوزخ یاد کړل شوی دی الله فرمایي :

وَأَصْحَابُ الشِّمَالِ مَا أَصْحَابُ الشِّمَالِ (41) فِي سَمُومٍ وَحَمِيمٍ (42) وَظِلٍّ مِنْ يَحْمُومٍ (43) لَا بَارِدٍ وَلَا كَرِيمٍ (44) إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَلِكَ مُتْرَفِينَ (45). [2]

ترجمة : او ملګری یاران د کینې لاس څومره بد دي ملګری یاران د کینې لاس په اور تاوده کې به وي او په سوځوونکیو اوبو کې به وی او په سیوري کې به وي د لوګي ډېر تور چې نه به بیخي سوړ وي او نه به د عزت او راحت وي (دا عذابونه په سبب د دې وو چې) بېشکه دوی وو پخوا له دې څخه په دنیا کې ودان کړل شوي په نعمتونو کې خوشحال .

---

1 سورة الجاثية
2 سورة الواقعة

## الله او د هغه رسول ته ضرر رسوونکي

هغه کسان چې الله او د هغه رسول ﷺ ته ضرر رسوي دا کسان به هم دوزخ ته ځي الله فرمايي :

**إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِينًا (57).** 1

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې ضرر رسوي الله ته (په ولد او شريک) او (ضرر رسوي) رسول الله ﷺ (ته په نسبت د سحر ، شعر او ليونتوب) لرې کړي دي دوی الله (له رحمته خپله) په دنيا او آخرت کې او تيار کړی ئې دی دوی ته عذاب سپکوونکی (اور د دوزخ) .

## عيسى معبود منونکی

هغه کسان چې عيسى ته خدای وايي او عبادت يې کوي د هغه کسانو لپاره هم دوزخ دی الله فرمايي :

**لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُواْ إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ وَقَالَ الْمَسِيحُ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ اعْبُدُواْ اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ إِنَّهُ مَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَاهُ النَّارُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ (72) . 2**

ترجمة : خامخا په تحقيق کافران شوي دي هغه کسان چې وائي دوی (له ډېره جهله) چې بېشکه الله هم دغه مسيح زوی د مريمې دی او ويل به مسيح چې اې بنې اسرائيلو (اولادې د يعقوب!) عبادت کوئ تاسې د (يوازې هغه) الله چې رب زما او رب ستاسې دی بېشکه شان دادی چې هرچا چې شريک

---

1 **الاحزاب**
2 **سورة المائدة**

ونيو له الله سره (په عبادت کې بل شی) نو په تحقيق حرام کړی دی الله په دغه (مشرک) باندې جنت او ځای د ده اور (د دوزخ دی) او نشته ظالمانو ته هېڅ مدد کوونکی (چې عذاب ترې دفعه کړي) .

# د الله تر حدونو تېرېدونكى

هغه كس چې په خپلو عملونو او يا خپلو خبرو كې تر هغه حدونو تېر شي چې الله بندگانو ته مقرر كړي دي د داسې كس لپاره به هم د دوزخ عذاب وي الله فرمايي :

وَمَن يَعْصِ اللّهَ وَرَسُولَهُ وَيَتَعَدَّ حُدُودَهُ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيهَا وَلَهُ عَذَابٌ مُّهِينٌ (14).[1]

ترجمة : او هرڅوك چې نا فرماني كوي د الله او د رسول د ده او وزي له حدونو د الله نو داخل به كړي (الله ) دغه (تجاوز كونكى) اور ته چې همېشه به وي (دى) په هغه (اور د دوزخ) كې او شته ده ته عذاب ډېر سپكوونكى.

## مرتد

هغه كس چې له خپل دين څخه واوړي يعني وروسته لدې چې الله وربانديې د اسلام فضل او احسان كړى وي هغه بيا له دې پاكې لارې څخه غلطې لارې ته واوړي ددې كس لپاره هم دوزخ دى الله فرمايي :

وَمَن يَرْتَدِدْ مِنكُمْ عَن دِينِهِ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُوْلَئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ وَأُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (217). 2

ترجمة : او هرڅوك چې گرځي له تاسې نه له دينه خپله پس مړ شي حال دا چې دوى كافر وي نو دغه كسان ضائع شوي دي (تېر) عملونه د دوى په دنيا او آخرت كې او دغه كسان صاحبان د اور (د دوزخ) دي هم دوى به په دې (اور) كې همېشه وي.

---

1 سورة النساء
2 سورة البقرة

# ګمراهان

هغه کسان چې له خپلې لارې نه بې لارې شي او په غلطه لاره روان او ګمراه شي دې کسانو ته هم دوزخ دى الله فرمايي :

يَا دَاوُودُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ فَاحْكُم بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوَى فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ إِنَّ الَّذِينَ يَضِلُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا نَسُوا يَوْمَ الْحِسَابِ (26). [1]

ترجمة: اې داؤده بېشکه مونږ ګرځولى مو ئې ته خليفه په زمکه کې (چې لوى سلطنت مو درکړى دى) پس حکم وکړه په منځ د خلقو کې په حق سره او متابعت مه کوه د هوا (د نفس په احکامو کې) پس ګمراه به کړي (دغه هوا) تا له لارې د الله بېشکه هغه کسان چې ګمراه کيږي له لارې د الله شته دوى ته عذاب سخت.

ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ (51) لَآكِلُونَ مِنْ شَجَرٍ مِنْ زَقُّومٍ (52) فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ (53) فَشَارِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيمِ (54) فَشَارِبُونَ شُرْبَ الْهِيمِ (55) هَذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّينِ (56). [2]

ترجمة: بيا به بېشکه تاسې اى ګمراهانو دروغ ويونکيو خامخا خوړونکى به يئ (په دوزخ کې) له ونې د زقوم څخه پس ډک کوونکي به يئ له هغې (ونې) څخه دګېډو خپلو لره . پس څښونکي به يئ تاسې په هغه (زقوم خوړلي شوي) باندې له اوبو سوځوونکيو څخه پس څښونکى به يئ (په شان) د څښلو د اوښانو ډيرو تږو او دا د جزاء په ورځ د دوى مېلمستيا ده .

---

[1] سورة ص
[2] سورة الواقعة

وَأَمَّا إِنْ كَانَ مِنَ الْمُكَذِّبِينَ الضَّالِّينَ (92) فَنُزُلٌ مِنْ حَمِيمٍ (93) وَتَصْلِيَةُ جَحِيمٍ (94).[1]

ترجمة: او كه چېرې وي (دغه مړی) له دروغ ویونکیو ګمراهانو څخه نو مېلمستیا ده (ده ته) له سوزوونکیو اوبو څخه او ننه ایستل دي په اور (د دوزخ) کې .

## د ایمان لاره پرېښودونکی

هغه کسان چې په خپله خوښه د ایمان لاره پرېږدي او په بله لاره روان شي دا کس به هم دوزخ ته ځي الله فرمايي :

وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءتْ مَصِيرًا (115).[2]

ترجمة: او هرڅوک چې مخالفت کوي له رسوله وروسته له هغه چې ښکاره شوه ده ته سمه لاره او تابع شي (لاړ شي) بې له لارې د مؤمنانو نو وبه ګرځوو مونږ دی هغه لوري ته چې دی ور ګرځېدلی دی او داخل به کړو مونږ دی دوزخ ته او بد ځای د ورتلو دی (دا دوزخ) .

## ابو لهب او د هغه ښځه

تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ (1) مَا أَغْنَى عَنْهُ مَالُهُ وَمَا كَسَبَ (2)سَيَصْلَى نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ (3)وَامْرَأَتُهُ حَمَّالَةَ الْحَطَبِ (4)فِي جِيدِهَا حَبْلٌ مِّن مَّسَدٍ (5).[3]

ترجمة : مات هلاک د شي دواړه لاسونه د ابي لهب او پخپله دی هم هلاک شو دفع به نه کړي (دغه

---

1 سورة الواقعة
2 سورة النساء
3 سورة لهب

هلاکت) لـه دغه (ابـي لـهب) څخه (اصلـي) مـال د ده او هغه چې ده ګټلي وو (يـعنـي اولاده ئـې) زر ده چې نـنـه بـه وزي (ابـي لـهب پـه قـيـامت کې) پـه اور خاونـد د لـمبـو کـې او (نـنـه بـه وزي) ښځه د هغه (ابـي لـهب) اور تـه پـه دې حال کـې چې بـار راوړونـکـې بـه وي د خسو (د دوزخ) .

## د پـردي مـال خوړونـکی

هغه کس چې رشوت خوري او يـا پـه نـا حقـه لاره بـانـدې پـردي مـالـونـه خوري د داسې کسانـو لـپاره بـه هم دوزخ وي الله فـرمـايـي:

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلاَّ أَن تَكُونَ تِجَارَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ وَلاَ تَقْتُلُواْ أَنفُسَكُمْ إِنَّ اللّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا (29) وَمَن يَفْعَلْ ذَلِكَ عُدْوَانًا وَظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا وَكَانَ ذَلِكَ عَلَى اللّهِ يَسِيرًا (30)** . [1]

تـرجـمـة: اې هغو کسانـو چې ايـمـان ئـې راوړی دی (يـعنـې اې مؤمـنـانـو!) مـه خورئ تـاسې مـالـونـه د يـو بـل پـه مـنځونـو خپلـو کـې پـه نـاروا سره! مـګـر (خورئ ئـې) کـه وي دا (مـالـونـه چې خورئ يـې امـوال د) تـجـارت (چې صادر وي) پـه خوښي سره لـه تـاسو نـه او مـه وژنـئ تـاسې سره ځانـونـه خپل (يـعنـي يـو بـل يـا مـه کـوئ تـاسې هغه کـار چې ستـاسې د هلاکت سبب وي) بـېشکـه چې الله دی پـر تـاسې بـانـدې ډېـر مـهربـان (د اجر او ثـواب پـه انـعـام سره) او هرڅوک چې وکـړي دغه (تـېر مـنـهيـات) پـه تـېرېـدلـو سره لـه حقـه او پـه ظلـم (تـجـاوز) سره نـو ژر بـه مـونـږ داخل کـړو دی اور (د دوزخ) تـه او دی دا (د دوزخ اور تـه د دوی نـنـه ايـستـل) پـر الله بـانـدې ډېـر اسان.

## نـا فـرمـان او فـاسقـان

---

[1] سورة النساء

هغه کسان چې د الله او د هغه د رسول نا فرماني کوي او د الله احکام نه مني هغه کسان به هم دوزخ ته ځي الله فرمايي :

وَمَن يَعْصِ اللّهَ وَرَسُولَهُ وَيَتَعَدَّ حُدُودَهُ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيهَا وَلَهُ عَذَابٌ مُّهِينٌ (14). [1]

ترجمة : هغه څوک چې نا فرماني وکوي د الله او د رسول د الله او د هغه له حدنو څخه تجاوز کوي داخل به يې کړي اور ته چې همېشه به وي پدې اور کې او دده لپاره عذاب دی سپکوونکی

لِلَّذِينَ اسْتَجَابُواْ لِرَبِّهِمُ الْحُسْنَى وَالَّذِينَ لَمْ يَسْتَجِيبُواْ لَهُ لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِي الأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لاَفْتَدَوْاْ بِهِ أُوْلَئِكَ لَهُمْ سُوءُ الْحِسَابِ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ (18). [2]

ترجمة : شته لپاره د هغو کسانو چې حکم قبول کړی دی دوی د رب خپل (جزا) نيکه (چې جنت دی) او هغه کسان چې نه وي قبول کړی دی حکم د دغه (الله ) که چېرې وي دوی ته هر هغه څه چې دي په زمکه کې ټول (او نور هم وي په مثل د دې له دې سره او په تصرف د دوی کې وي په قيامت کې) نو خامخا به فديه ورکړي دوی په هغو (ټولو سره نو نه به خلاصيږي له عذابه) دغه کسان مقرر دی دوی لره بد (سخت) حساب (چې نه به يې نيکي قبوله او نه به يې بدي محو کيږي) او ځای د هستوګنې د دوی دوزخ دی او بد ځای د آرام (او خرابه بستره) ده (دغه دوزخ) .

وَأَمَّا الَّذِينَ فَسَقُوا فَمَأْوَاهُمُ النَّارُ كُلَّمَا أَرَادُوا أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا أُعِيدُوا فِيهَا وَقِيلَ لَهُمْ ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّذِي كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ (20). [3]

---

[1] **سورة النساء**
[2] **سورة الرعد**
[3] **سورة السجدة**

ترجمة: او پس هرڅه هغه کسان چې فاسقان شوي دي پس ځای د هستوګنې د دوی اور (د دوزخ) دی (هر کله چې اراده وکړي دوی ددې چې را وځي له دغه اوره نو بېرته به غورځول کیږي دوی په دغه اور کې او ویل کیږي به دوی ته (د اهانت په ډول) و څکئ تاسې عذاب د اور هغه عذاب چې وئ تاسې چې د هغه به مو تکذیب کاوه.

إِلَّا بَلَاغًا مِّنَ اللَّهِ وَرِسَالَاتِهِ وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ لَهُ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا (23).[1]

ترجمة: مګر خو (مالک یم د) تبلیغ (د شریعت تاسو ته) له (طرفه د) الله او (تبلیغ د) رسالت د دغه (الله) او هرڅوک چې نا فرماني کوي د الله او د رسول الله ﷺ نو بېشکه هغه لره دی اور د دوزخ حال دا چې تل به وي په هغه کې همېشه (چې نه به خلاصیږي ترې هېڅېږي).

وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِينَ كَفَرُوا عَلَى النَّارِ أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُم بِهَا فَالْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ بِمَا كُنتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنتُمْ تَفْسُقُونَ (20) .[2]

ترجمة : او یاد کړه (اې محمده ﷺ!) هغه ورځ چې وړاندې کړل شي هغه کسان چې کافران شوي دي پر اور (د دوزخ باندې او وبه ویلی شي ورته) چې وړي دي تاسې مزې نیکې خپلې په ژوندون لږ خسیس خپل کې او نفع اخیستې ده تاسې په هغه سره (په دنیا کې) پس نن ورځ به جزاء درکوله شي تاسې ته د عذاب سپکوونکي په سبب د هغې چې وئ به تاسو (په دنیا کې) چې تکبر لوئي به مو کوله په زمکه کې په ناحقه سره او په سبب د

---

[1] سورة الجن
[2] سورة الاحقاف

هغې چې وئ تــاسو چې نــافـرمــانــي بــه مــو كــولــه (پــه دنــيــا كــې) .

# سر کښان

هغه کسان چې د اسلام له دين څخه سر کشي کوي د اسلامي احکامو څخه سرغړونه کوي د هغوی لپاره هم دوزخ دی الله فرمايي:

إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا (21) لِلْطَّاغِينَ مَآبًا (22). 1

ترجمة : بېشکه دوزخ چې ځای د انتظار (د کتو لپاره د تېرېدونکيو دی) سر کشو لره د ورتللو او د هستوګنې ځای دی .

هَذَا وَإِنَّ لِلطَّاغِينَ لَشَرَّ مَآبٍ (55) جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ الْمِهَادُ (56).2

ترجمة: دغه (حال د مطيعانو وو) او بېشکه د پاره د سر کشانو خامخا بده مرجع ده (چې هغه) دوزخ دی چې ننوزي دوی په هغه کې پس بده بستره ده (دا دوزخ)

فَأَمَّا مَنْ طَغَى (37) وَآَثَرَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا (38) فَإِنَّ الْجَحِيمَ هِيَ الْمَأْوَى (39). 3

ترجمة: پس هر هغه چې سرکشي کړې وي (په کفر سره) او غوره کړی ئې وي ژوندون لږ خسيس (پر آخرت باندې) پس بېشکه دوزخ هم دا (دوزخ د ده) د هستوګنې ځای دی.

1 سورة النباء
2 سورة ص
3 سورة النازعات

# جوماتونه ړنګونکي

هغه کسان چې جوماتونه ړنګوي او خلک نه پرېږدي چې په جوماتونو کې الله یاد کړي او د جوماتونو په ورانولو کې کوښښ کوي دا خلک به هم دوزخ ته ځي الله فرمایي :

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَاجِدَ اللّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ وَسَعَى فِي خَرَابِهَا أُوْلَئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَن يَدْخُلُوهَا إِلاَّ خَآئِفِينَ لهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ وَلَهُمْ فِي الآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ (114). [1]

ترجمة: او څوک دی لوی ظالم (بلکه نشته) له هغه چا څخه چې بندوي مسجدونه د الله له دې چې یاد کړل شي په هغو کې نوم د الله او کوښښ کوي په ورانولو (او شاړولو) د هغو کې دغه کسان نه دي لائق دوی ته دا چې ننوزي دغو مسجدونو ته مګر وېرېدونکي (له مؤمنانو څخه) دوی ته په دنیا کې ذلت دی او شته دوی ته په آخرت کې عذاب ډېر لوی .

# فاسقان

هغه کسان چې د الله احکام نه مني هغوی فاسقان دي د هغوی لپاره هم دوزخ یاد شوی دی الله فرمایي :

وَأَمَّا الَّذِينَ فَسَقُوا فَمَأْوَاهُمُ النَّارُ كُلَّمَا أَرَادُوا أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا أُعِيدُوا فِيهَا وَقِيلَ لَهُمْ ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّذِي كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ (20). [2]

ترجمة: او پس هرڅه هغه کسان چې فاسقان شوي دي پس ځای د هستوګنې د دوی اور (د دوزخ) دی (هر کله چې اراده وکړي دوی ددې چې را وځي له دغه

---

[1] **سورة البقرة**
[2] **سورة السجدة**

اوره نو بېرته به غورځول کيږي دوی په دغه اور کې او ويل کيږي به دوی ته (د اهانت په ډول) و څکئ تاسې عذاب د اور هغه عذاب چې وئ تاسې چې د هغه به مو تکذيب کاوه.

## فاجران

هغه کسان چې د الله احکام ماتوي هغه فاجران دي د هغوی سزا هم دوزخ دی الله فرمايي :

وَإِنَّ الْفُجَّارَ لَفِي جَحِيمٍ (14) يَصْلَوْنَهَا يَوْمَ الدِّينِ (15). [1]

ترجمة: او بېشکه چې فجار بد کاران (کافران) خامخا په دوزخ کې دي ننوځي دوی په هغه کې په ورځې د جزاء کې .

## مجرمين

هغه کسان چې گناهونه کوي او په دنيا کې جرمونه کوي لدې جرمونو سره پداسې حال کې د الله سره مخامخ شي چې نه يې ورځخه توبه ويستلې وي او نه يې بښنه غوښتې وي دداسې کسانو لپاره هم قرآن کريم دوزخ ياد کړی دی الله فرمايي :

وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَى جَهَنَّمَ وِرْدًا (86) . [2]

ترجمة: او شړو (په شدت سره) مجرمان (طرف د) دوزخ ته (د حيواناتو په شان) پلي (پياده ، په پښو روان) تږي.

إِنَّهُ مَن يَأْتِ رَبَّهُ مُجْرِمًا فَإِنَّ لَهُ جَهَنَّمَ لَا يَمُوتُ فِيهَا وَلَا يَحْيَى (74) . [1]

---

1 **سورة الانفطار**

2 **سورة مريم**

ترجمة: بېشكه شان دادى هرڅوک چې راشي رب خپل ته كافر (په عقبى كې) پس بېشكه شته ده ته دوزخ چې نه به مري په دې دوزخ كې (چې آرام شي) او نه به ژوندن كوي (د ژوندون په څېر).

وَامْتَازُوا الْيَوْمَ أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ (59) أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَا بَنِي آَدَمَ أَنْ لَا تَعْبُدُوا الشَّيْطَانَ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُبِينٌ (60) وَأَنِ اعْبُدُونِي هَذَا صِرَاطٌ مُسْتَقِيمٌ (61) وَلَقَدْ أَضَلَّ مِنْكُمْ جِبِلًّا كَثِيرًا أَفَلَمْ تَكُونُوا تَعْقِلُونَ (62) هَذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي كُنْتُمْ تُوعَدُونَ (63) .[2]

ترجمة: او (وبه ويل شي چې) را جدا شئ نن ورځ اې مجرمانو (كافرانو له مؤمنانو څخه) آيا حكم نه وو كړى ما تاسې ته (په ژبو د رسولانو سره) اې زامنو د آدم په دې سره چې عبادت مه كوئ تاسې د شيطان بېشكه دغه شيطان تاسې ته دښمن دى ښكاره او (داسې حكم مې نه وو كړى بلكه كړى مې وو) چې عبادت كوئ (يوازې) زما دغه (عبادت زما) لاره ده سمه (چې جنت ته تللې ده) او خامخا په تحقيق ګمراه كړي وو (شيطان) له تاسې خلق ډېر آيا پس نه يئ تاسې داسې چې عقل وچلوئ (وبه ويل شي منكرانو ته په آخرت كې) دا دوزخ دى هغه چې وئ تاسې چې (په دنيا كې) وعده ئې درسره كړل شوې وه.

إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي عَذَابِ جَهَنَّمَ خَالِدُونَ (74) لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ وَهُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ (75) وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ وَلَكِن كَانُوا هُمُ الظَّالِمِينَ (76) .[3]

ترجمة: بېشكه چې مجرمان (كافران) په عذاب د دوزخ كې به همېشه پاتې كېدونكي وي نه به سپكاوه شي له دوى څخې (عذاب) او دوى به په دغه عذاب كې ساكت نا اميده وي (له نجاته او نشاطه) او نه دى كړى مونږ ظلم پر دوى وليكن

---

1 **سورة طه**

2 **سورة يس**

3 **سورة زخرف**

دوی وو هم دوی ظالمان (پر ځانونو خپلو په کفر سره)

هَذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي يُكَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُونَ (43) يَطُوفُونَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ آَنٍ (44).[1]

ترجمة: دا هغه دوزخ دی چې پرې تکذیب به کاوه مجرمانو (کافرانو) ګرځي به دوی په مینځ د دوزخ او په مینځ د اوبو ډېرو تودو ډېرو ګرمو کې.

فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءَلُونَ (40) عَنِ الْمُجْرِمِينَ (41) مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ (42).[2]

ترجمة: (اصحاب اليمين به وي) په جنتونو کې پوښتنې به سره کوي له حاله د مجرمانو (ګنهګارانو) نو وبه وایي مؤمنان منکرانو ته داسې چې (څه شي داخل کړي یئ تاسې (اې منکرانو) په دوزخ کې؟

## د الله وعده ماتونکي

هغه کسان چې د الله سره عهد وکوي او هغه بیا مات کړي د هغوی سزا هم دوزخ دی الله فرمایي:

وَالَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهْدَ اللّهِ مِن بَعْدِ مِيثَاقِهِ وَيَقْطَعُونَ مَآ أَمَرَ اللّهُ بِهِ أَن يُوصَلَ وَيُفْسِدُونَ فِي الأَرْضِ أُوْلَئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوءُ الدَّارِ (25).[3]

ترجمة: او هرڅه هغه کسان چې ماتوي دوی عهد د الله وروسته د محکموالي د هغه (په قبول او اقرار سره) او پرې کوي دوی هغه شی چې امر (حکم) کړی دی الله په هغه سره چې وصل د کړل شي او فساد کوي دوی په زمکه کې (په کفر او ظلم سره) دغه (مذکور) کسان شته دوی ته لعنت لرې

---

1 **سورة الرحمن**
2 **سورة المدثر**
3 **سورة الرعد**

والی له رحمت د الله (دنیوي عذاب) او شته دوی ته بد عاقبت د دار (د آخرت چې اور دی).

## د یتیمانو مال خوړونکی

هغه کسان چې په ناروا سره د یتیمانو مال خوري د هغوی لپاره هم دوزخ ځای دی الله فرمایي:

إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا (10). 1

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې خوري دوی مالونه د یتیمانو په ظلم سره (بې له شرعي اجازې) خبره دا ده چې خوري دوی په (ډکو) ګېډو خپلو سره اور او ژر به ورسیږي (ننه به وځي) دوی اور سخت ته.

## فخر کونکي

هغه کسان چې په خپل مال یا دنیاوي ژوند او یا څه دنیاوي مرتبه باندې فخر کوي د هغه ځای هم دوزخ دی الله فرمایي:

لاَ تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَفْرَحُونَ بِمَا أَتَواْ وَّيُحِبُّونَ أَن يُحْمَدُواْ بِمَا لَمْ يَفْعَلُواْ فَلاَ تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (188). 2

ترجمة: له سره مه کوه ګمان (اې محمده ﷺ!) په هغو کسانو چې خوشحالیږي په هغه کار چې کړی دی دوی (د خلقو له بې لارې کولو) او مینه کوي دوی په دې چې وستایل شي دوی په هغه کار چې نه وي کړی (له تمسکه په حق او دوی ګمراهان دي) پس له سره مه ګڼه ته دوی په ځای د خلاصېدلو له

---

1 سورة النساء
2 سورة آل عمران

عذاب (بلکه په دوزخ کې دي) او مقرر دی دوی لره عذاب درد رسوونکی.

## بد عمله

هغه کسان چې عملونه يې بد وي او بد عملونه کوي د هغوی لپاره هم سزا دوزخ دی الله فرمايي:

**بَلَى مَن كَسَبَ سَيِّئَةً وَأَحَاطَتْ بِهِ خَطِيئَتُهُ فَأُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (81).** [1]

ترجمة: بلکه (رسيږي تاسې ته دائمي اور) هر چا چې کسب کړه بدي او چاپېره شوه پر ده گناه د ده (چې تر مرگه پورې کفر دی) نو هم دغه کسان صاحبان د اور (د دوزخ) دي دوی به په هغه اور (د دوزخ) کې تل وي.

**وَالَّذِينَ كَسَبُواْ السَّيِّئَاتِ جَزَاء سَيِّئَةٍ بِمِثْلِهَا وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ مَّا لَهُم مِّنَ اللّهِ مِنْ عَاصِمٍ كَأَنَّمَا أُغْشِيَتْ وُجُوهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ اللَّيْلِ مُظْلِمًا أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (27).** [2]

ترجمة: او هغه کسان چې کسب ئې کړی دی دبدو (لکه کفر او نفاق) جزا د بدي (د دوی) په قدر د بدي ده (نه ترې زياته) او پټوي به دوی لره ذلت (رسوائي) نه به وي دوی ته له (عذابه د) الله هېڅ ساتونکی گواکي پټ کړل شوي دي مخونه د دوی په قطعو (ټوټو) د شپې سره حال دا چې تک تور به وي دغه صاحبان د اور (د دوزخ) دي هم دوی په دغه دوزخ کې تل اوسېدونکي دي.

**وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِؤُون (33).** [3]

---

1 **سورة البقرة**
2 سورة يونس
3 **سورة الجاثية**

ترجمة: او ښکاره به شي (په قيامت کې) دوی ته نا کاره والی (بدې جزاوې) د هغو (بدو اعمالو) چې کړي وو دوی (په دنيا کې) او چاپېر (نازل) به شي په دوی عذاب هغه چې وو دوی چې په هغه پورې به يې مسخرې کولې.

## هغه چې په درواغو قسمونه خوري

هغه کسان چې درواغ وايي او بيا وربانديې قسم خوري پدې توګه د دوی د قسم له امله نا حق ته د حق په نظر کتل کيږي ددې کسانو لپاره هم دوزخ دی الله فرمايي:

إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلاً أُوْلَئِكَ لاَ خَلاَقَ لَهُمْ فِي الآخِرَةِ وَلاَ يُكَلِّمُهُمُ اللّهُ وَلاَ يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلاَ يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (77). [1]

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې بدل اخلي دوی په عهد د الله باندې (چې ايمان په نبي او اداء د امانت ده) او په (دروغو) قسمونو خپلو باندې (ايمان په محمدﷺ او نصرت) قيمت لږ (دنيوي د هغه د نه منلو په عوض) دغه کسان نشته هېڅ برخه د دوی د پاره په آخرت کې او نه به خبرې وکړي له دوی سره الله (په خوښي) او نه به وګوري دوی ته (الله په رحم سره) په ورځې د قيامت کې او نه به پاک کړي دوی (الله له کفره) او (شته) دوی ته عذاب دردناک (په سبب د دغو بدو افعالو د دوی).

## ظالمان

هغه کسان چې ظلمونه کوي يا په خلقو او يا په ځان باندې په بدو عملونو او يا په کفر سره د

---

[1] سورة آل عمران

هغوی لپاره هم په قرآن کریم کې په متعددو ځایونو کې د دوزخ سزا یاده شوېده الله فرمايي:

سَنُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُواْ الرُّعْبَ بِمَا أَشْرَكُواْ بِاللّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا وَمَأْوَاهُمُ النَّارُ وَبِئْسَ مَثْوَى الظَّالِمِينَ (151). [1]

ترجمة: ژر به وغورځوو مونږ په زړونو د هغو کسانو کې چې کافران شوي دي رعب (هیبت _ ویره) په سبب د شریک نیولو د دوی په الله سره هغه شی چې نه دی نازل کړی (الله ) په (شریک نیولو د ) هغه کوم برهان (دلیل) او ځای د هستوګنې د دوی اور (د دوزخ) دی او بد ځای د هستوګنې د ظالمانو دی (دا اور د دوزخ).

ثُمَّ قِيلَ لِلَّذِينَ ظَلَمُواْ ذُوقُواْ عَذَابَ الْخُلْدِ هَلْ تُجْزَوْنَ إِلاَّ بِمَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ (52) وَيَسْتَنبِئُونَكَ أَحَقٌّ هُوَ قُلْ إِي وَرَبِّي إِنَّهُ لَحَقٌّ وَمَا أَنتُمْ بِمُعْجِزِينَ (53) وَلَوْ أَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ ظَلَمَتْ مَا فِي الأَرْضِ لاَفْتَدَتْ بِهِ وَأَسَرُّواْ النَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُاْ الْعَذَابَ وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ وَهُمْ لاَ يُظْلَمُونَ (54) . [2]

ترجمة: بیا به وویل شي هغو کسانو ته چې ظلم ئې کړی دی وڅکئ عذاب د همیشګي آیا سزا به درکولی شي تاسې ته (نشي به درکولی) مګر په سبب د هغه شرک او تکذیب چې وئ تاسې چې کولو به مو (یا) نه درکولی شي جزاء مګر په سبب د هغې چې وئ تاسې چې کول به مو (چې هغه شرک او تکذیب ستاسو دی) او پوښتنه کوي له تا نه چې آیا حق دي دا (قرآن یا دعوی د نبوت یا عذاب؟ که مسخرې کوي؟ ووایه (اې محمده ﷺ! دوی ته) هو! قسم دې وي زما په رب خپل چې بېشکه دغه خامخا حق دي او نه یئ تاسې عاجزوونکي (د الله چې له عذابه ئې ځان خلاص کړئ) او که بېشکه (مملوک شي) د پاره د هر نفس چې ظلم ئې کړی وي

[1] سورة آل عمران
[2] سورة يونس

(پخپل ځان باندې په کفر او شرک سره) هغه چې دي په زمکه کې نو خامخا به فديه ورکړي دغه نفس په دغه (هر څه سره له عذابه) او وبه مومي دوی (په زړونو خپلو کې (په ترک د ايمان) پښېماني کله چې ووينې دوی عذاب او فيصله به وکړه شي په مينځ د دوی (يعني د خلائقو) کې په انصاف او حال دا چې له دوی سره به ظلم نه کيږي .

وَإِذَا رَأى الَّذِينَ ظَلَمُواْ الْعَذَابَ فَلاَ يُخَفَّفُ عَنْهُمْ وَلاَ هُمْ يُنظَرُونَ (85). [1]

ترجمة: او کله چې ووينې هغه کسان چې ظلم (شرک) ئې کړی دی (پر نفسونو خپلو) عذاب نو سپک به نه کړل شي له دوی نه (دروند عذاب د دوزخ) او نه به دوی ته مهلت ورکړل شي (لپاره د عذر ويلو) .

وَقَالَ الشَّيْطَانُ لَمَّا قُضِيَ الأَمْرُ إِنَّ اللّهَ وَعَدَكُمْ وَعْدَ الْحَقِّ وَوَعَدتُّكُمْ فَأَخْلَفْتُكُمْ وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُم مِّن سُلْطَانٍ إِلاَّ أَن دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِي فَلاَ تَلُومُونِي وَلُومُواْ أَنفُسَكُم مَّا أَنَاْ بِمُصْرِخِكُمْ وَمَا أَنتُمْ بِمُصْرِخِيَّ إِنِّي كَفَرْتُ بِمَآ أَشْرَكْتُمُونِ مِن قَبْلُ إِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (22). [2]

ترجمة: او وبه وايي شيطان کله چې فيصله شي امر (د حساب په قيامت کې) بېشکه چې الله وعده کړې وه له تاسې سره (په دنيا کې) وعده د حق (چې بعث او جحيم او نعيم دي) او وعده کړې وه ما له تاسې سره بيا نو خلاف مې وکړ له تاسې سره (په وعده کې لکه چې اوس درښکاره شوه) او نه وو ماته پر تاسې هېڅ حکومت (او غلبه) مګر دا قدر چې وبللئ ما تاسې (ګمراهي ته) نو قبول کړ تاسې (په تشو غولولو سره) دعوت زما نو مه ملامتوئ تاسو ما او ملات کړئ نفسونه (ځانونه) خپل نه يم زه اوس فريادرس (له عذابه

---

[1] سورة النحل
[2] سورة ابراهيم

خلاصوونکی) ستاسې او نه يئ تاسې فرياد رس (له عذابه خلاصوونکی) زما بېشکه زه کافر (منکر بيزاره يم) له هغه اشراکه د تاسې ما لره (له الله سره په طاعت کې) پخوا (له دې نه په دنيا کې) نو فرمائي الله ) بېشکه چې ظالمان شته دوی ته عذاب ډېر دردناک.

وَأَنذِرِ النَّاسَ يَوْمَ يَأْتِيهِمُ الْعَذَابُ فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُواْ رَبَّنَا أَخِّرْنَا إِلَى أَجَلٍ قَرِيبٍ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ أَوَلَمْ تَكُونُواْ أَقْسَمْتُم مِّن قَبْلُ مَا لَكُم مِّن زَوَالٍ (44).[1]

ترجمة: او وېروه (اې رسوله زما) خلق له هغې ورځې څخه چې را به شي دوی ته عذاب (چې قيامت يا مرګ دی) نو وبه وايي هغه کسان چې ظلم ئې کړی دی (په شرک او تکذيب سره) اې ربه زمونږ وروسته کړه (مهلت راکړه) مونږ ته تر نيټې نيږدې پورې چې قبوله کړو بلنه ستا او متابعت وکړو د رسولانو (وبه فرمايي الله د سرټکونې په ډول) آيا نه وئ تاسو چې قسم به کاوه تاسې پخوا له دې نه (په دنيا کې) چې نشته تاسې ته هېڅ زوال (له دنيا نه آخرت ته په بيا ژوندون سره) .

وَقُلِ الْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ فَمَن شَاء فَلْيُؤْمِن وَمَن شَاء فَلْيَكْفُرْ إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلظَّالِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا وَإِن يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاء كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ وَسَاءتْ مُرْتَفَقًا (29). 2

ترجمة: ووايه (اې محمده ﷺ! دوی ته اسلام قرآن) حق دی له رب ستاسې پس هرڅوک چې اراده (د ايمان) وکړي نو ايمان دې راوړي! او هرڅوک چې اراده (د کفر) وکړي نو کافر د شي بېشکه چې مونږ تيار کړی مو دی لپاره د ظالمانو

[1] سورة ابراهيم
[2] سورة الكهف

(کافرانو داسې) اور چې چاپېر شوی دی له دوی پردې د هغه (چې هغه پردې به هم د اور وي) او که فریاد وکړي (دوی له تندې) نو فریاد به یې واخیستی شي (په ورکولو د داسې) اوبو (سره) لکه زوې (یا د تېلو خټې) چې وریتوي به مخونه بد څیز د څښلو دي (دغه زوې) او بد دی (دغه اور ځای د آرام یا) له وجې د انتفاع.

ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوا وَّنَذَرُ الظَّالِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا (72)[1]

ترجمة: بیا به نجات ورکړو هغو کسانو ته چې پرهېزګاري ئې کړې ده او پرې به ږدو ظالمان په دوزخ کې پر ګونډو پرېوتلي.

وَمَن يَقُلْ مِنْهُمْ إِنِّي إِلَهٌ مِّن دُونِهِ فَذَلِكَ نَجْزِيهِ جَهَنَّمَ كَذَلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ (29).[2]

ترجمة: او هرڅوک چې ووایي له دغو (ملائکو څخه چې) زه معبود یم بې له الله څخه پس دغه (ویونکی چې دی) جزاء به ورکوو مونږ ده ته دوزخ هم داسې (لکه چې دغو د الوهیت مدعیانو ته سزا ورکوو) جزاء ورکوو ظالمانو ته (چې د غیر الله عبادت کوي) .

أَفَمَن يَتَّقِي بِوَجْهِهِ سُوءَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَقِيلَ لِلظَّالِمِينَ ذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ (24).[3]

ترجمة: آیا پس هغه څوک چې ځان ساتي په مخ خپل سره له سختي د عذاب د ورځې د قیامت (په شان د هغه مامون دي؟ بلکه نه دي) او وبه ویلی شي ظالمانو ته چې وڅکئ (خوند) د هغه عمل چې وئ تاسې چې کاوه به مو (په دنیا کې)

---

1 سورة مريم
2 سورة الانبياء
3 سورة الزمر

وَلَوْ أَنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لَافْتَدَوْا بِهِ مِن سُوءِ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَبَدَا لَهُم مِّنَ اللَّهِ مَا لَمْ يَكُونُوا يَحْتَسِبُونَ (47). [1]

ترجمة: او كه چېرې بېشكه مملوك شي د هغه كسانو چې ظلم ئې (پر نفسونو خپلو په كفر سره اختيار كړى دى هغه (اموال مبالغ) چې په زمكه كې دي ټول او په مثل (هم د هغه) نور ورسره شي نو خامخا فديه به وركړي دوى په هغه سره له بدرنګه عذابه په ورځ د قيامت كې او ښكاره به شي دوى ته له جانبه د الله هغه (عذاب) چې نه ؤ دوى چې ګمان به يې كوو (د هغه) .

يَوْمَ لَا يَنفَعُ الظَّالِمِينَ مَعْذِرَتُهُمْ وَلَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوءُ الدَّارِ (52). [2]

ترجمة: په هغې ورځې كې به هېڅ نفع نه رسوي ظالمانو ته معذرت عذرونه د دوى او شته دوى ته لعنت لرېوالى له رحمته او شته دوى ته نا كاره كور (د دوزخ)

فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنفَعُ الَّذِينَ ظَلَمُوا مَعْذِرَتُهُمْ وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ (57). 3

ترجمة: پس په دغې ورځې كې به نه رسوي ګټه (فايده) هغو كسانو ته چې ظلم كړى دى دوى (په ځانونو خپلو په كفر سره) عذر د دوى او نه به دوى وبلللى شي راضي كولو د الله ته (يا به نه له دوى نه معذرت غوښتل كيږي) .

وَلَن يَنفَعَكُمُ الْيَوْمَ إِذ ظَّلَمْتُمْ أَنَّكُمْ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ (39). 4

ترجمة: او له سره به څه فايده ونه رسوي تاسې ته نن ورځ (له دې جهته) چې ظلم كړى دى تاسې (

---

1 سورة الزمر
2 سورة غافر(مؤمن)
3 سورة الروم
4 سورة الزخرف

په شرک سره) دا چې بېشکه تاسې (سره له ملګرو خپلو) په عذاب کې سره شریکان یئ (لکه چې په کفر کې سره شریکان وئ) .

فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَلَا ضَرًّا وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّتِي كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ (42).[1]

ترجمة : (نو الله فرمایي) پس نن ورځ نه لري اختیار ځینې ستاسې (معبودان) د پاره د ځینو نورو (عابدانو) نه د نفعې او نه د ضرر او وبه وایو مونږ د پاره د هغو کافرانو چې ظلم ئې کړی دی و څکئ تاسې عذاب د اور هغه چې وئ تاسې چې د دې (اور) تکذیب مو کاوه .

احْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوا يَعْبُدُونَ (22).[2]

ترجمة : (وبه فرمایي الله ملائکو ته چې) را ټول کړئ تاسې هغه کسان چې ظلم ئې کړی وو (په ځانونو خپلو په انکار او په شرک سره) او (کافرانې) ښځې (یا شیطانان ملګري) د دوی او هغه چې وو دوی چې عبادت به یې کاوه (د بتانو) .

وَتَرَاهُمْ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا خَاشِعِينَ مِنَ الذُّلِّ يَنظُرُونَ مِن طَرْفٍ خَفِيٍّ وَقَالَ الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ الْخَاسِرِينَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ وَأَهْلِيهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَلَا إِنَّ الظَّالِمِينَ فِي عَذَابٍ مُّقِيمٍ (45).[3]

ترجمة : او وینې به ته دوی چې وړاندې کولی به شي په دغه اور په دغه حال کې چې ویرېدونکي به وي له خواري ګوري به دوی (دغه اور ته) په کتنې پټې (له ډېره هېبته به د سترګو له کنجونو ورته ګوري) او وایي به هغه کسان چې

1 سورة سبا
2 سورة الصافات
3 سورة الشورى

ایمان ئې راوړی دی (داسې چې) بېشکه زیانکاران هغه کسان دي چې زیان ئې رسولی دی نفسونو خپلو ته او کورنۍ خپلې ته په ورځ د قیامت کې (په خلود فی الجحیم او حرمان من النعیم سره) واوره خبردار شه ! چې بېشکه ظالمان په عذاب همېشه کې دي .

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ وَظَلَمُواْ لَمْ يَكُنِ اللّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلاَ لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيقاً (168) إِلاَّ طَرِيقَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا وَكَانَ ذَلِكَ عَلَى اللّهِ يَسِيرًا (169).[1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي او ظلم ئې کړی دی (په پټولو د صفاتو د محمدﷺ یا په منعه د مؤمنانو له ایمانه) نه دی الله چې بښنه وکړي دوی ته او نه چې وښيي دوی ته سمه صافه لاره (څو چې دوی کافران دي) مګر (وبه ښيي دوی ته) لاره د دوزخ چې همېشه به وي دوی په هغه کې تل تر تله (بې انتها او بې انقطاع) او دی دغه (د همېش لپاره داخلول په اور کې) پر الله باندې ډېر اسان.

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللّهِ كَذِبًا أَوْ قَالَ أُوْحِيَ إِلَيَّ وَلَمْ يُوحَ إِلَيْهِ شَيْءٌ وَمَن قَالَ سَأُنزِلُ مِثْلَ مَا أَنَزلَ اللّهُ وَلَوْ تَرَى إِذِ الظَّالِمُونَ فِي غَمَرَاتِ الْمَوْتِ وَالْمَلآئِكَةُ بَاسِطُواْ أَيْدِيهِمْ أَخْرِجُواْ أَنفُسَكُمُ الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ بِمَا كُنتُمْ تَقُولُونَ عَلَى اللّهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنتُمْ عَنْ آيَاتِهِ تَسْتَكْبِرُونَ (93).[2]

ترجمة : او څوک دی ډېر ظالم؟ (یعني هېڅوک نشته!) له هغه چانه چې تړي پر الله دروغ یا وائي چې وحی کړې شوېده ماته حال دا چې وحی نه وي کړل شوې ده ته د هېڅ شي او (بل څوک دی ډېر ظالم یعني نشته له) هغه چې وایي ژر به (زه هم) نازل کړم (وبه لیکم له ځانه) په مثل د هغه کتاب چې نازل کړی دی الله (تاته اې محمده

---

1 سورة النساء
2 سورة الانعام

ﷺ! چې قرآن دی) او که وویني ته (اې محمده ﷺ!) ظالمان یعني کافران په هغه وخت کې چې ظالمان په (باطني او روحاني) سختیو د مرګ کې وي حال دا چې پرښتې (د عذاب) غزوونکې وي د لاسونو خپلو (د روح د قبض د پاره نو وائي دوی ته چې) را وباسئ تاسې ارواح خپل (چې ئې قبض کړو مونږ که ئې ایستی شئ یا ئې له عذابه وباسئ!) نن ورځ به جزا درکړه شي تاسې ته عذاب سپکوونکی (یعني چې له سخت تکلیف سره ذلت او رسوائي هم وي) په سبب د هغه چې وئ تاسې چې ویل به مو پر الله (وینا) نا حقه او وئ تاسې چې له آیتونو دده څخه به مو تکبر کاوه (او نه به مو منل نو وبه ګورئ یوه قبیحه منظره).

وَأَعْتَدْنَا لِلظَّالِمِينَ عَذَابًا أَلِيمًا (37).[1]

ترجمة: او تیار کړی دی مونږ د پاره د ظالمانو عذاب ډېر دردناک.

وَإِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (21).[2]

ترجمة: بېشکه د ظالمانو لپاره شته دی عذاب دردناک.

فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَا أَنَّهُمَا فِي النَّارِ خَالِدَيْنِ فِيهَا وَذَلِكَ جَزَاء الظَّالِمِينَ (17).[3]

ترجمة: پس دی عاقبت او انجام د دواړو (ګمراه کونکو او ګمراه شویو) داسې چې بېشکه هغوی دواړه به وي په اور (د دوزخ) کې تل به اوسیږي دوی (دواړه) په هغه (اور د دوزخ) کې او هم دا (خلود د اور د دوزخ جزاء د ظالمانو) ده.

---

1 سورة الفرقان
2 سورة الشورى
3 سورة الحشر

يُدْخِلُ مَن يَشَاء فِي رَحْمَتِهِ وَالظَّالِمِينَ أَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا (31) [1]

ترجمة: داخلوي (الله ) هغه څوک چې اراده (د دخول ئې) وفرمايي په رحمت خپل کې او ظالمان (کافران چې دي) تيار کړی دی (الله ) دوی ته عذاب ډېر دردناک.

[1] **سورة الدهر (الانسان)**

# تارک الصلاة

ځرنګه چې مونځ په اسلام کې اهمه فريضه ده او په قيامت کې به هم له بنده سره اول حساب د مانځه کيږي هغه کسان چې مونځ نه کوي د هغه کسانو لپاره هم دوزخ ياد کړل شوى دى الله فرمايي :

فَخَلَفَ مِن بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا (59). 1

ترجمة: پس پيداشول پس له دوى نه (داسې بد) خليفګان چې ضائع کړ دوى لمونځ او متابعت وکړ دوى د شهواتو (نفساني خواهشونو) پس ژر به يو ځاى شي دوى له بد عاقبت سره.

فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءلُونَ (40) عَنِ الْمُجْرِمِينَ (41) مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ (42) قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ (43). 2

ترجمة: (اصحاب اليمين به وي) په جنتونو کې پوښتنې به سره کوي له حاله د مجرمانو (ګنهګارانو) نو وبه وايي مؤمنان مجرمانو ته داسې چې (څه شي داخل کړي يئ تاسې (اې مجرمانو) په دوزخ کې و به وايي مجرمان په ځواب د مؤمنانو کې چې) نه وو مونږ (په دنيا کې) له لمونځ کوونکيو (مونځ مونه کاوه) .

---

1 سورة مريم

2 سورة المدثر

# د الله له ذکر نه مخ اړوونکی

هغه کسان چې د الله له ذکر نه مخ اړوي او اعراض ورڅخه کوي د هغه کسانو لپاره هم دوزخ یاد کړل شوی دی الله فرمایي:

وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى (124) قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي أَعْمَى وَقَدْ كُنْتُ بَصِيرًا (125) قَالَ كَذَلِكَ أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا وَكَذَلِكَ الْيَوْمَ تُنْسَى (126) وَكَذَلِكَ نَجْزِي مَنْ أَسْرَفَ وَلَمْ يُؤْمِنْ بِآيَاتِ رَبِّهِ وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَدُّ وَأَبْقَى (127).[1]

ترجمة: او هرچا چې مخ وګرځاوه له ذکره (پنده) زما پس بېشکه ده ته دی معاش تنګ (په دنیا یا سخت عذاب په قبر کې) او پورته به کړو مونږ دی (له قبره او محشر ته به ئې راولو) په ورځې د قیامت کې ړوند وبه وایي (دغه ړوند کافر) اې ربه زما ولې دې پاڅولم (راوستلم) زه ړوند حال دا چې په تحقیق زه وم بینا (په دنیاکې) وفرمایل (الله ) هم داسې وو (لکه چې ته ئې وایې) خو راغلي وو تاته آیتونه زمونږ پس هېر کړل تا هغه او په مثل (د هغو هېرولو ستا) نن ورځ هېر به کړل شې ته هم پرېښود به شې ته په عذاب کې او په مثل د همدې جزا ورکولو (زمونږ دغو کفارو ته) جزا ورکوو مونږ هغه ته چې له حده ووت او ایمان ئې رانه وړ په آیتونو د رب خپل او خامخا عذاب د آخرت ډېر سخت دی او ډېر باقي پاتې کېدونکی دی.

---

[1] سورة طه

# په زمکه کې فساد کونکي

هغه کسان چې په زمکه کې فساد کوي او په زمکه کې شر جوړوي هغه کسان به هم دوزخ ته ځي الله فرمايي :

وَإِذَا تَوَلَّى سَعَى فِي الأَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيِهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ وَاللّهُ لاَ يُحِبُّ الفَسَادَ (205) وَإِذَا قِيلَ لَهُ اتَّقِ اللّهَ أَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالإِثْمِ فَحَسْبُهُ جَهَنَّمُ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ (206).[1]

ترجمة: او کله چې بېرته وګرځې (له تا نه اې محمده ﷺ!) نو ګرځندی ګرځي په زمکه (د مدينې) کې د پاره ددې چې فساد وکړي په زمکه کې او هلاکوي کښت (فصل) او ساکښان (ژوندي شيان) او کله چې وويل شي ده ته چې وويرېږه له الله نيسي دی کبر (عار او ننګ په کولود) ګناه نو پس کافي دی ده لره (عذاب د اور) د دوزخ او خامخا بد بستر دی (دا اور د دوزخ) .

إِنَّمَا جَزَاء الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الأَرْضِ فَسَادًا أَن يُقَتَّلُواْ أَوْ يُصَلَّبُواْ أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلافٍ أَوْ يُنفَوْاْ مِنَ الأَرْضِ ذَلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ (33) . 2

ترجمة: بېشکه هم دا خبره ده چې جزا د هغو کسانو چې جنګ کوي دوی له (دوستانو) د الله او د رسول د ده سره او سعی کوي (منډې وهي) دوی په زمکه کې له پاره د فساد (او بد امني جوړولو) چې دوی ووژل شي يا دې په دار کړل شي يا دې پرې کړل شي لاسونه د دوی او پښې د دوی سره مخالفې (يعني ښی لاس او کينه پښه يا عکس د دې) يا د وشړل شي له زمکې (په حبس سره يا له هغه ځايه بل لرې ځای ته) دا (مذکوره جزا) دغو

---

1 سورة البقرة

2 سورة المائدة

(غلو) ته رسوايي ده په دنيا کې او (شته) دغو (غلو) ته په آخرت کې عذاب ډېر لوی.

وَالَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهْدَ اللّهِ مِن بَعْدِ مِيثَاقِهِ وَيَقْطَعُونَ مَآ أَمَرَ اللّهُ بِهِ أَن يُوصَلَ وَيُفْسِدُونَ فِي الأَرْضِ أُوْلَئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوءُ الدَّارِ (25) . [1]

ترجمة: او هرڅه هغه کسان چې ماتوي دوی عهد د الله وروسته د محکموالي د هغه (په قبول او اقرار سره) او پرې کوي دوی هغه شی چې امر (حکم) کړی دی الله په هغه سره چې وصل د کړل شي او فساد کوي دوی په زمکه کې (په کفر او ظلم سره) دغه (مذکور) کسان شته دوی ته لعنت لرې والی له رحمت د الله (دنيوي عذاب) او شته دوی ته بد عاقبت د دار (د آخرت چې اور دی).

## دين خرڅونکي

هغه کسان چې د خپل دين په بدل کې پيسې اخلي او د پيسو لپاره له خپل دين څخه تيريږي هغه کسان چې له کفارو سره کار کوي او د هغوی دخوشحال کولو لپاره له خپل دين څخه هم تيريږي د داسې کسانو لپاره هم دوزخ دی الله فرمايي:

إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلاً أُوْلَئِكَ لاَ خَلاَقَ لَهُمْ فِي الآخِرَةِ وَلاَ يُكَلِّمُهُمُ اللّهُ وَلاَ يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلاَ يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (77). [2]

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې بدل اخلي دوی په عهد د الله باندې (چې ايمان په نبي او اداء د امانت ده) او په (دروغو) قسمونو خپلو باندې (ايمان په محمدﷺ او نصرت) قيمت لږ (دنيوي د هغه د نه منلو په عوض) دغه کسان نشته هيڅ برخه د دوی د پاره په آخرت کې او نه به خبرې

---
[1] سورة الرعد
[2] سورة آل عمران

وکړي له دوی سره الله (په خوښي) او نه به وګوري دوی ته (الله په رحم سره) په ورځې د قیامت کې او نه به پاک کړي دوی (الله له کفره) او (شته) دوی ته عذاب دردناک (په سبب د دغو بدو افعالو د دوی) .

## دنیا غوره کونکی

هغه کسان چې د آخرت په مقابل کې دنیا غوره کړي او دنیا واخلي او د آخرت په اړه فکر نه کوي داسې کسان به هم دوزخ ته ځي الله فرمایي :

اللَّهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَوَيْلٌ لِلْكَافِرِينَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيدٍ (2) الَّذِينَ يَسْتَحِبُّونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الْآخِرَةِ وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا أُولَئِكَ فِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ (3). [1]

ترجمة : هغه الله چې خاص ده ته دي هر هغه چې په اسمانونو کې دي (له علویاتو) او هر هغه چې په زمکه کې دي (له سفلیاتو سره د اسمانونو او د زمکو) او خرابي (عذاب، مصیبت او اور) دی د پاره د کفارو له عذابه سخته هغه کفار چې خوښوي (او غوره کوي له ډېره حماقته) ژوندون لږ خسیس پر آخرت او اړوي (خلق) له لارې د الله چې دین او متابعت د رسول الله ﷺ دی) او لټوي دوی دغې لارې ته کوږوالی ، دغه کسان په ګمراهي لرې کې دي (له حقه) .

مَنْ كَفَرَ بِاللَّهِ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِهِ إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ وَلَكِنْ مَنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِنَ اللَّهِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ (106) ذَلِكَ بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الْآخِرَةِ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ (107) أُولَئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَى قُلُوبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ وَأُولَئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ (108). [2]

---

1 **سورة ابراهيم**

2 **سورة النحل**

ترجمة: هر څوک چې کافر شو پر الله وروسته له ایمانه راوړلو د ده (نو پرې غضب دی د الله) مګر هغه څوک چې زور پرې وکړل شو (او مجبوراً یې د کفر کلمه وویله) حال دا چې زړه دده آرام نیونکی وي په ایمان سره و لیکن هغه څوک چې خلاصه کړي په کفر سره سینه (خپله چې راضي شي پرې اعتقاداً) نو پر دوی باندې غضب دی له (طرفه د) الله او شته دوی ته عذاب لوی (اخروي په سبب د ارتداد) دا (لوی اخروي عذاب) په سبب د دې دی چې دوی غوره کړی دی ژوندن لږ خسیس پر (اعلی ژوندانه د) آخرت او بېشکه الله نه ښيي لیاره (د استقامت) قوم کافرانو ته دا (کفار) همغه کسان دي چې مهر وهلی دی الله پر زړونو د دوی (چې نه قبلوي حق) او په غوږونو د دوی (چې نه آوري حق) او په سترګو د دوی (چې نه ویني آثار د قدرت) او دغه کسان (یعني کفار) هم دوی دي غافلان (له آخرته).

فَأَمَّا مَنْ طَغَى (37) وَآَثَرَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا (38) فَإِنَّ الْجَحِيمَ هِيَ الْمَأْوَى (39).[1]

ترجمة: پس هرهغه چې سرکشي یې کړې وي (په کفر سره) او غوره کړی ئې وي ژوندون لږ خسیس (په آخرت باندې) پس بېشکه دوزخ هم دا (دوزخ د ده) د هستوګنې ځای دی.

## په دین کې اختلاف پیدا کونکي

هغه کسان چې په دین کې اختلاف پیدا کوي او پدې اړه د مسلمانانو ذهنونه سره ګډ وډ کوي او لانجې را پورته کوي د هغه کسانو لپاره هم دوزخ دی الله فرمایي:

---

[1] سورة النازعات

وَلاَ تَكُونُواْ كَالَّذِينَ تَفَرَّقُواْ وَاخْتَلَفُواْ مِن بَعْدِ مَا جَاءهُمُ الْبَيِّنَاتُ وَأُوْلَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ (105) يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكْفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ فَذُوقُواْ الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ (106). [1]

ترجمة: او مه کېږئ تاسې په شان د هغو کسانو چې سره جلا (جدا) شول او اختلاف (جګړې) ئې وکړې د دين په اصولو کې وروسته له هغه چې راغلي وو دوی ته دلائل ښکاره (د اسلام د حقيقت) او دا متفرقان مختلفان مقرر دي) دوی ته عذاب ډېر لوی (د دوزخ) په هغه ورځ چې سپين شي (ځينې) مخونه (د مؤمنانو) او تور به شي (ځينې) مخونه (د کافرانو) پس هر څه هغه کسان چې تور شوي دي مخونه د دوی (نو وبه ويل شي دوی ته) آيا کافران شوي يئ تاسې وروسته له ايمان راوړلو ستاسې؟

[1] سورة آل عمران

## د خواهشاتو متابعت کونکی

هغه کس چې هر وخت په خپلو خواهشاتو پسې لګېدلی وي او د خواهشاتو په پوره کولو کې کوښښ کوي ضروري خبره ده چې د هر خواهش پوره کولو اسلام اجازه نه ورکوي نو د داسې خواهش پرست انسان لپاره هم دوزخ دی الله فرمايي:

فَخَلَفَ مِن بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا (59) إِلَّا مَن تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَأُوْلَئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُونَ شَيْئًا (60).[1]

ترجمة: پس پيداشول پس له دوی نه (داسې بد) خليفګان چې ضائع کړ دوی لمونځ او متابعت وکړ دوی د شهواتو (نفساني خواهشونو) پس ژر به يو ځای شي دوی له بد عاقبت سره مګر هغه چا چې توبه ئې وويستله او ايمان ئې راوړ او عمل ئې وکړو نېک پس دغه کسان به ننوځي په جنت کې او ظلم به پر دوی ونه کړل شي هېڅ قدر (د ثواب په کمولو او د عذاب په زياتېدلو سره).

## په دين کې شک کونکي

هغه کس چې په دين کې يې شک وي او په پوره يقين سره نه مني او پدې اړه شک کوي دا به هم دوزخ ته ځي الله فرمايي :

أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ (24) مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُّرِيبٍ (25).[2]

ترجمة : (نو وبه ويل شي دوو فرښتو ته) وغورځوئ تاسې په دوزخ کې هر يو کافر عناد کوونکی منع

---

[1] **سورة مريم**
[2] **سورة ق**

کوونکی د خیر تېرېدونکي له حدودو مشروعو ظالم او شک کوونکی (په دین کې).

## د الله له لارې بندونکی

هغه کس چې نور خلک د الله له لارې بندوي او د ګمراهي په لاره یې اړوي او په غلطه لاره یې روانوي د داسې کس لپاره هم دوزخ دی الله فرمایي :

اللّهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ وَوَيْلٌ لِّلْكَافِرِينَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيدٍ (2) الَّذِينَ يَسْتَحِبُّونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الآخِرَةِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللّهِ وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا أُوْلَئِكَ فِي ضَلاَلٍ بَعِيدٍ (3). [1]

ترجمة: هغه الله چې خاص ده ته دي هر هغه چې په اسمانونو کې دي (له علویاتو) او هر هغه چې په زمکه کې دي (له سفلیاتو سره د اسمانونو او د زمکو) او خرابي (عذاب، مصیبت او اور) دی د پاره د کفارو له عذابه سخته هغه کفار چې خوښوي (او غوره کوي له ډېره حماقته) ژوندون لږ خسیس پر آخرت او اړوي (خلق) له لارې د الله چې دین او متابعت د رسول الله ﷺ دی) او لټوي دوی دغې لارې ته کوږوالی ، دغه کسان په ګمراهي لرې کې دي (له حقه) .

الَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ اللّهِ زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُواْ يُفْسِدُونَ (88). [2]

ترجمة : هغه کسان چې پخپله کافران شوي دي او اړولي یې دي دوی (نور خلق هم په دنیا کې) له لیارې د الله زیات به کړو مونږ دوی ته (په آخرت کې) یو عذاب د پاسه د بل په سبب د هغه چې وو

---

1 سورة ابراهيم
2 سورة النحل

دوی چې فساد به یې کاوه (چې کفر او منع ده د اسلامه) .

## کوږ والی لټوونکی

هغه کسې چې د الله په لاره کې کوږ والی لټوي او او یا غواړي چې په خپل تاویل او مهارت سره خلک په بله لاره روان کړي دې کسانو ته هم دوزخ یاد کړل شوی دی الله فرمايي :

اللَّهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ وَوَيْلٌ لِّلْكَافِرِينَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيدٍ (2) الَّذِينَ يَسْتَحِبُّونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الآخِرَةِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللّهِ وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا أُوْلَئِكَ فِي ضَلاَلٍ بَعِيدٍ (3). [1]

ترجمة: هغه الله چې خاص ده ته دي هر هغه چې په اسمانونو کې دي (له علویاتو) او هر هغه چې په زمکه کې دي (له سفلیاتو سره د اسمانونو او د زمکو) او خرابي (عذاب، مصیبت او اور) دی د پاره د کفارو له عذابه سخته هغه کفار چې خوښوي (او غوره کوي له ډېره حماقته) ژوندون لږ خسیس پر آخرت او اړوي (خلق) له لارې د الله چې دین او متابعت د رسول الله ﷺ دی) او لټوي دوی دغې لارې ته کوږوالی ، دغه کسان په ګمراهي لرې کې دي (له حقه) .

## بحث کوونکي

هغه کسان چې په دین کې بې ځایه بحثونه کوي او د دیني خبرو د تائید په ځای هر وخت په دین باندې د اعتراض کولو کوښښ کوي او کوښښ کوي چې په څه نه څه خبره کې په دین اعتراض وکوي دا کسان هم دوزخیان دي الله فرمايي :

[1] سورة ابراهيم

فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءلُونَ (40) عَنِ الْمُجْرِمِينَ (41) مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ (42) قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ (43) وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِينَ (44) وَكُنَّا نَخُوضُ مَعَ الْخَائِضِينَ (45). [1]

ترجمة: (اصحاب اليمين به وي) په جنتونو کې پوښتنې به سره کوي له حاله د مجرمانو (ګنهګارانو) نو وبه وايي مؤمنان مجرمانو ته داسې چې (څه شي داخل کړي يئ تاسې (اې مجرمانو) په دوزخ کې و به وايي مجرمان په ځواب د مؤمنانو کې چې) نه وو مونږ (په دنيا کې) له لمونځ کوونکيو څخه او نه وو مونږ چې طعام خواړه مو ورکړي وى مسکينانو ته او وو به مونږ چې ننوتلو شغل مو کاوه په (باطلو) خبرو کې سره له ډېرو خبرو کوونکيو (يعني خلکو به چې د دين په اړه باطلې خبرې کولې مونږ به هم ورسره کېناستو او هماغه خبرې به مو ورسره کولې).

[1] سورة المدثر

## مسلمانو ته ضرر رسوونکى

هغه کس چې مسلمانانو ته ضرر رسوي هغوى ته هم دوزخ ياد شوى دى الله فرمايي :

**إِنَّ الَّذِينَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَتُوبُوا فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَرِيقِ (10).** [1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې په فتنه کې غورځولي وي ضرر ئې رسولى وي ايمان لرونکيو سړيو ته او ايمان لرونکيو ښځو ته بيا ئې توبه نه وي ايستلې (او نه وي ګرځېدلې له کفره) نو دوى ته دى (په آخرت کې) عذاب د دوزخ او دى دوى ته عذاب د اور سوزوونکي.

## له دنيا سره مينه کونکى

هغه کسان چې له دنيا سره مينه کوي او د آخرت په اړه څه فکر او غم نه کوي او په دنيا کې داسې مطمئن وي چې دا ورته ابدي هستوګنځى ښکاره کيږي ددې کسانو ځاى هم دوزخ دى الله فرمايي :

**إَنَّ الَّذِينَ لاَ يَرْجُونَ لِقَاءنَا وَرَضُواْ بِالْحَياةِ الدُّنْيَا وَاطْمَأَنُّواْ بِهَا وَالَّذِينَ هُمْ عَنْ آيَاتِنَا غَافِلُونَ (7) أُوْلَئِكَ مَأْوَاهُمُ النُّارُ بِمَا كَانُواْ يَكْسِبُونَ (8).** [2]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې نه لري اميد د ملاقات زمونږ (او له آخرته منکران دي) او خوښ دي په دې ژوند لږ خسيس او آرام ئې نيولى (راضي شوي دي) په دې (ژوند پورې او له حشره غافلان دي) او هغه کسان چې دوى له آيتونو (دلا ئلو د قدرت) زمونږ نه غافلان دي دغه مذکوره

---

1 **سورة البروج**
2 **سورة يونس**

کسان ځای د ورتلو د دوی اور (د دوزخ) دی په سبب د هغه چې وو دوی چې کول به يې .

مَن كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الْآخِرَةِ نَزِدْ لَهُ فِي حَرْثِهِ وَمَن كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الدُّنْيَا نُؤتِهِ مِنْهَا وَمَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِن نَّصِيبٍ (20). 1

ترجمة: او هرڅوک چې وي دی چې اراده لري (په عمل خپل سره متاع) کښت د دنيا نوورېه کړو ده ته له هغه (که اراده وفرمايو) او نه به وي ده ته په آخرت کې هېڅ برخه (د خير) .

وَذَرِ الَّذِينَ اتَّخَذُواْ دِينَهُمْ لَعِبًا وَلَهْوًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا وَذَكِّرْ بِهِ أَن تُبْسَلَ نَفْسٌ بِمَا كَسَبَتْ لَيْسَ لَهَا مِن دُونِ اللّهِ وَلِيٌّ وَلاَ شَفِيعٌ وَإِن تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لاَّ يُؤْخَذْ مِنْهَا أُوْلَئِكَ الَّذِينَ أُبْسِلُواْ بِمَا كَسَبُواْ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُواْ يَكْفُرُونَ (70). [2]

ترجمة: او پرېږده ته هغه کسان چې ګرځولی دی دوی دين خپل لوبې او عبث (چې پرې مسخرې کوي) او غره کړي (غولولي) دي دوی لره حيات دنيوي (ژوند لږ خسيس نو ځکه منکران شوي دي له حشره) او پند ورکوه ته په دغه (قرآن سره خلقو ته) څو (ونه) سپارل شي (هلاک ته) هېڅ نفس په سبب د هغه عمل چې کړی ئې وي حال دا چې نه وي دغه نفس ته بې له الله نه کوم ولي (دوست مانع د آفت په دنيا کې) او نه شفاعتګر (دافع د مصيبت په عقبا کې) او که فديه ورکړي (دانفس) هر قسم فديه نو وابه نه خيستی شي دا (فديه يعني قبوله به نه شي له دې نفس څخه) دا (مذکورين چې دين لهو او لعب نيولی دی) هغه کسان دي چې سپارلي شوي دي (هلاک ته) په سبب د هغو کارونو چې کړي دي دوی شته دوی لره څښل له ډېرو ګرمو اوبو او عذاب دی دردناک په سبب د دې چې وو دوی چې کافران کېدل.

1 سورة شورى
2 سورة الانعام

وَنَادَى أَصْحَابُ النَّارِ أَصْحَابَ الْجَنَّةِ أَنْ أَفِيضُواْ عَلَيْنَا مِنَ الْمَاء أَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّهُ قَالُواْ إِنَّ اللّهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى الْكَافِرِينَ (50) الَّذِينَ اتَّخَذُواْ دِينَهُمْ لَهْوًا وَلَعِبًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا فَالْيَوْمَ نَنسَاهُمْ كَمَا نَسُواْ لِقَاء يَوْمِهِمْ هَذَا وَمَا كَانُواْ بِآيَاتِنَا يَجْحَدُونَ (51). [1]

ترجمة: او غږ به وکړي صاحبان د اور صاحبانو د جنت ته داسې چې را توی کړئ تاسې پر مونږ باندې له اوبو نه یا (را واچوئ) له هغو شیونو چې روزي کړي دي تاسې ته الله وبه وایي جنتیان (د دوزخیانو په ځواب کې) چې بېشکه الله حرام کړي دي دا دواړه (خوراک او څښاک) پر کافرانو هغه کافران چې نیولی دی دوی دین خپل تماشا او لوبې او غولولي وو دوی ژوندانه لږ خسیس نو نن به هېروو (پرېږدو) مونږ دوی لکه چې هېر کړی وو دوی ملاقات د ورځې خپلې چې دغه ده او (لکه چې) وو دوی چې په آیتونو زمونږ به یې انکار کاوه (چې الله نه دي را لېږلي).

قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا (103) الَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا (104) اولَئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا (105) ذَلِكَ جَزَاؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوا وَاتَّخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا (106). [2]

ترجمة: ووایه (اې محمده ﷺ! دوی ته) آیا خبر کړو تاسې په ډېرو سختو زیانکارانو باندې له جهته د عمله دوی هغه کسان دي چې ورک دي منډې او زیار د دوی په دغه ژوندون لږ خسیس کې (ځکه چې غافلان وو له آخرته) حال دا چې دوی ګمان کوي د دې چې بېشکه دوی ښه کوي کار (او عمل او په واقع کې داسې نه ده) دغه کسان (چې بېرته یاد شول) هغه کسان دي چې کافران شوي دي په آیاتونو (د قدرت) درب خپل (په دنیا کې) او په

---

1 سورة الاعراف
2 سورة الكهف

لقاء د دغه (الله په آخرت کې) پس باطل خراب شول عملونه د دوی پس وبه نه درووو د پاره د دوی په ورځ د قیامت کې تله (ځکه چې حسنات نه لري یا تله د نفعې به دوی ته نه درووو) (کار) دغه (دی چې د دوی اعمال باطل شول) جزا د دوی ده دوزخ په سبب د دې چې کافران شوي وو دوی او نیولي وو دوی آیتونه (د قدرت) زما او رسولان زما مسخره.

وَقِيلَ الْيَوْمَ نَنسَاكُمْ كَمَا نَسِيتُمْ لِقَاء يَوْمِكُمْ هَذَا وَمَأْوَاكُمْ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن نَّاصِرِينَ (34) ذَلِكُم بِأَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا وَغَرَّتْكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُونَ مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ (35) . [1]

ترجمة: او وبه ویل شي چې نن ورځ به هېر کړو (پرې به ږدو) مونږ تاسې (په دوزخ کې) لکه چې هېر کړی وو تاسې ملاقات د ورځې ستاسې دغه (چې ورځ د قیامت ده) او ځای ستاسې اور دی او نشته تاسو ته هېڅوک له مددګارانو (چې مو ترې خلاص کړي) دغه (تعذیب له دې سببه دی) چې بېشکه تاسې نیولي مو وو آیتونه (د قرآن) د الله په ټوکو سره او مغرور کړي وئ تاسې دغه ژوندن لږ خسیس نو نن ورځ وبه نه ایستلی شي دوی له دوزخه او نه به د دوی عذر قبول (او توبه ومنله) شي.

# د انبیاوو قاتلین

هغه کسان چې انبیاء او هغه کسان چې سمې لارې ته غوښتل کوي قتل کوي هغوی ته هم د دردناک عذاب یعني دوزخ زیری ورکړل شوی دی الله فرمایي:

[1] سورة الجاثیة

إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآَيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (21) أُولَئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآَخِرَةِ وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ (22). [1]

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې کافران کيږي پر آياتونو (احکامو) د الله باندې او وژني دوی انبياء په ناحقه سره (پخپل اعتقاد کې هم) او وژني هغه کسان چې حکم کوي هغوی په عدل (او انصاف) سره له خلقو څخه پس زېری ورکړه دوی ته په عذاب دردناک سره دا همغه کسان دي چې باطل شوي دي عملونه د دوی په دنيا کې او په آخرت کې او نشته دوی ته هېڅ مددګاران.

[1] **سورة آل عمران**

# سود خور

هغه کس چې خلکو ته پیسې د سود لپاره ورکوي او سود خوري دې کس ته هم د دوزخ سزا یاده کړل شوې ده الله فرمایي :

الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا لاَ يَقُومُونَ إِلاَّ كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُواْ إِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبَا وَأَحَلَّ اللّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا فَمَن جَاءهُ مَوْعِظَةٌ مِّن رَّبِّهِ فَانتَهَىَ فَلَهُ مَا سَلَفَ وَأَمْرُهُ إِلَى اللّهِ وَمَنْ عَادَ فَأُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (275). [1]

ترجمة : هغه کسان چې خوري (یعني اخلي) سود (له خلقو) نه پاڅیږي دوی (د قیامت په ورځ کې) مګر (پاڅیږي داسې) لکه چې پاڅیږي هغه څوک چې حواس ئې خراب کړي وي شیطان (د عربو په ګومان) له (خپله) اثره دا (حال د دوی) په سبب د دې دی چې دوی ویل بېشکه هم دا خبره ده چې تجارت هم داسې دی (په جواز کې) لکه سود حال دا چې حلال کړی دی الله تجارت او حرام کړی ئې دی سود پس هرڅوک چې راشي ده ته پند له (طرفه د) رب د ده پس منع شو (له سوده) پس دي ده ته هغه شی چې پخوا ئې اخیستي دي او معامله ئې الله ته (سپارلې شوې) ده او هرڅوک چې بېرته وګرځېده (سود ته او حلال ئې وګڼه) نو دغه کسان صاحبان د اور (د دوزخ) دي چې دوی به په دې اور کې تل وي .

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَأْكُلُواْ الرِّبَا أَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً وَاتَّقُواْ اللّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (130) وَاتَّقُواْ النَّارَ الَّتِي أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ (131). [2]

ترجمة : اې هغو کسانو چې ایمان ئې راوړی دی یعني اې مؤمنانو! مه خورئ سود په دې حال چې

---

1 سورة البقرة
2 سورة آل عمران

دوه چنده پر دوه چنده (وي) او وويريږئ له الله ښايي چې په مراد به ورسېږئ (خلاص به شي تاسې د الله له قهره) او ووېريږئ! له اوره هغه چې تيار کړل شوی دی له پاره د کافرانو.

## له جهاد نه تښتېدونکی

هغه کس چې د جهاد په ميدان کې په شا ځي او د مسلمانانو په صفونو کې ماتې ګډوي او د کفارو په وړاندې په خپله د تښتې لاره غوره کوي دا کس به هم دوزخ ته ځي الله فرمايي:

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آَمَنُوا إِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ الْأَدْبَارَ (15) وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَى فِئَةٍ فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ (16).** [1]

ترجمة: اې هغو کسانو چې ايمان ئې راوړی دی (يعنې اې مؤمنانو!) کله چې يو ځای شئ تاسې (يا مخامخ شئ يا پېښ شئ په جنګ کې) هغو کسانو سره چې کافران شوي دي (د جنګ په ډګر کې) په دغه حال کې چې دوی غونډ (او ګڼ) وي نو مه ګرځوئ تاسې دغه (کفارو) ته شاوې خپلې (د تېښتې په نيت) او هر هغه چې وګرځوي دغو (کفارو) ته په دغه ورځ (دمخامخ کېدلو د جنګ) شا خپله مګر په دې حال کې چې بېرته ګرځېدونکی وي (په هنر سره) له پاره د جنګ يا حال دا چې يو ځای کېدونکی وي په طرف د بلې طائفې (د مجاهدينو) نو په تحقيق رجوع ئې وکړه او اخته شو په غضب (قهر) له (جانبه د) الله او ځای د اوسېدلو د ده دوزخ دی او بد ځای د ورتلو دی (دا دوزخ) .

## قاتل

[1] سورة الانفال

هغه کس چې يو مؤمن په ناحقه سره قتل کړي چې نه وربانديږ قصاص وي ، نه يې د احصان نه وروسته زنا کړې وي او نه مرتد شوی وي او نه يې څه بل داسې زياتى او جرم کړى وي چې له امله يې اسلامي عدالت ورته د مرگ سزا آورولې وي نو د داسې کس قاتل به هم دوزخ ته ځي الله فرمايي:

وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا (93).1

ترجمة: او هر څوک چې مړ کړي کوم مؤمن په قصد سره (او د مسلمان دغه قتل روا هم وگڼي) نو جزا د ده دوزخ دى (په داسې حال کې) چې تل به وي دى (دغه حلال گڼونکى د قتل) په هغه ((دوزخ)) کې او غضب (قهر) کړى دى الله په ده باندې او لرې کړى دى (الله) دا (قاتل) له خپل رحمت څخه او تيار کړى يې دى ده ته عذاب ډير لوى .

---

1 سورة النساء

# غريبانو ته د خوراک ورکولو ترغيب نه ور کونکی

يعني هغه کس چې خلکو ته ددې نصيحت نه کوي او هغوی ته ترغيب نه ورکوي چې هغوی غريبانو ته خوراک ورکړي دې کس ته هم په څو ځايونو کې د دوزخ عذاب ياد شوی دی الله فرمايي :

فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءلُونَ (40) عَنِ الْمُجْرِمِينَ (41) مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ (42) قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ (43) وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِينَ (44).[1]

ترجمة: (اصحاب اليمين به وي) په جنتونو کې پوښتنې به سره کوي له حاله د مجرمانو (ګنهګارانو) نو وبه وايي مؤمنان مجرمانو ته چې (څه شي داخل کړي يئ تاسې (اې مجرمانو) په دوزخ کې و به وايي مجرمان په ځواب د مؤمنانو کې چې) نه وو مونږ (په دنيا کې) له لمونځ کوونکيو څخه او نه وو مونږ چې طعام خواړه مو ورکړي وی مسکينانو ته.

خُذُوهُ فَغُلُّوهُ (30) ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ (31) ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ (32) إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ الْعَظِيمِ (33) وَلَا يَحُضُّ عَلَى طَعَامِ الْمِسْكِينِ (34) .[2]

ترجمة: و نيسئ دی! پس په ځنځير سره وتړئ دی! بيا (اورد) د دوزخ ته وغورځوئ دی! بيا په ځنځير کې چې ګزونه د هغه اويا ګزه وي پس ننه باسئ دی (په دوزخ کې) بېشکه دی وو (په دنيا) چې ايمان ئې نه راوړو په الله لوی باندې او تاکيد تيز والی ئې نه کاوه په طعام ورکولو د مسکينانو محتاجانو باندې.

---

1 سورة المدثر
2 سورة الحاقة

# حق نه ليدونكي

هغه كسان چې حق نه ويني ، نه يې آوري او لكه د ځناورو داسې وي چې د حق په خبره نه پوهيږي د هغه كسانو لپاره هم دوزخ دى الله فرمايي :

وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالإِنسِ لَهُمْ قُلُوبٌ لاَّ يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لاَّ يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لاَّ يَسْمَعُونَ بِهَا أُوْلَئِكَ كَالأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ أُوْلَئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ (179) .[1]

ترجمة: او خامخا په تحقيق پيدا كړي دي مونږ د پاره د دوزخ ډېر كسان له جن (پېريانو) او له انسانانو چې دى دوى لره زړونه چې هېڅ نه پوهيږي دوى په هغو سره (په حق له باطله) او دى دوى لره داسې سترګې چې نه ويني دوى په هغو سره (نښې د قدرت) او دي دوى لره داسې غوږونه چې نه آوري په هغو سره (آيتونه د الله ) دغه كسان په شان د چارپايانو دي (د نفساني امورو په اتباع كې) بلكه دوى (چې مكلفان دي) ډېر ګمراهان دي (له چارپايانو څنې) دغه كسان هم دوى دي غافلان.

# فحاشي خپرونكى

هغه كس چې فحش مواد خپروي ، فحش خبرې خپروي او په خلكو كې د فحاشي د خپرولو كوښښ كوي چې په هر ډول وي ددې كسانو لپاره هم دوزخ دى ترډې لاندې لرې نه ده چې ټول هغه كسان راشي چې نن سبا په انټرنېټ باندې په خاصه توګه په فيسبوك كې د ښځو تصويرونه او ويډيو ګانې او نور فحاشيات خپروي يا هغه لايک كوي او يا تر هغې لاندې ليكل كوي چې پدې توګه دده دوستانو ته ور ښكاره كيږي چې ده دا تصوير يا ويډيو

[1] سورة الاعراف

خوښه (لایک) کړېده او پدې ډول هغه تصویر او ویډیو خپرېږي الله فرمایي :

إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ (19). [1]

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې خوښوي دغه (خبره) چې خوره شي فاحشه بد نامي په هغو کسانو کې چې ایمان ئې راوړی دی شته دغو (کسانو) ته عذاب دردناک په دنیا کې (په حد د قذف او بدنامي سره) او په آخرت کې (په اور د دوزخ سره) او الله ښه عالم دی او تاسې نه پوهېږئ (پر ضرر د هغې خورې کړې فاحشې).

## کبر جن

هغه کسان چې کبر کوي د هغوی لپاره هم د دوزخ دردناک عذاب یاد شوی دی الله فرمایي :

وَأَمَّا الَّذِينَ اسْتَنكَفُواْ وَاسْتَكْبَرُواْ فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا أَلُيمًا وَلاَ يَجِدُونَ لَهُم مِّن دُونِ اللّهِ وَلِيًّا وَلاَ نَصِيرًا (173). [2]

ترجمة: او هغه کسان چې ننګ (او عار) ئې کړی وي او تکبر (لوئي) ئې کړې وي (د الله له عبادت څخه) نو عذاب به ورکړي دوی ته (الله) عذاب دردناک او نه به مومي دوی ځان ته بې له الله هېڅ دوست (چې په آفاتو کې ورته فایده ورسوي) او نه هېڅ مدد ګار (چې له عذابه یې خلاص کړي) .

وَالَّذِينَ كَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُواْ عَنْهَا أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (36). [1]

---

1 **سورة النور**
2 **سورة النساء**

ترجمة: او هغه کسان چې نسبت ئې د دروغو کړې آیتونو زمونږ ته او کبر (سرکشي کوي) له (قبلولود) هغې آیتونو هم دغه کسان صاحبان (ملګري) د اور (د دوزخ) دي هم دوی به په دغه اور کې تل وي.

إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُواْ عَنْهَا لاَ تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاء وَلاَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ (40). [2]

ترجمة: بېشکه هغه کسان چې نسبت د دروغو کوي آیتونو زمونږ ته او تکبر کوي (له قبول) د هغو وبه نه پرانیستلی شي دوی ته ورونه د آسمان (چې پورته یوړل شي نیک عملونه او ارواح د دوی) او نه به داخل شي دوی جنت ته تر هغه پورې چې ننوزي اوښ په سوري د ستنې کې او هم داسې (لکه جزا د متکبرانو) جزا ورکوو مونږ مجرمانو (کافرانو) ته مقرر دی دوی ته له دوزخ څخنې فرش او وي به د پاسه د دوی آغوستنې (پر دې د اور) او هم داسې (لکه جزا ددې خلقو) جزا ورکوو مونږ ظالمانو ته.

وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِ آيَاتُنَا وَلَّى مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا كَأَنَّ فِي أُذُنَيْهِ وَقْرًا فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (7). [3]

ترجمة: او کله چې ولوستل شي په ده باندې آیتونه (د قرآن) زمونږ نو وګرځوي ترې مخ حال دا چې متکبر غاړه غړوونکی وي داسې چې ګواکې له سره ئې نه دي آورېدلي (دا آیتونه) ګواکې په دواړو غوږونو د ده کې درونده والی کوڼوالی دی پس زېرې یعني خبر ورکړه ته هغه ته په عذاب دردناک سره .

---

1 سورة الاعراف
2 سورة الاعراف
3 سورة لقمان

وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ تَرَى الَّذِينَ كَذَبُواْ عَلَى اللَّهِ وُجُوهُهُم مُّسْوَدَّةٌ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْمُتَكَبِّرِينَ (60) . [1]

ترجمة: او په ورځې د قيامت كې به وويني ته هغه كسان چې دروغ ئې تړلي دي پر الله پوري (په نسبت د شرک او نورو عيوبو مخونه د دوی به تور كړل شوي وي آيا نشته په دوزخ كې ځاى د پاره كبر كوونكو (كافرانو؟ يعني شته!) .

ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ (76). [2]

ترجمة: ننوځي تاسې په (اوو) دروازو د دوزخ كې په دې حال چې همېشه پاتې كېدونكي اوسئ په دغه (دوزخ) كې پس ناكاره ځاى د متكبرانو دى (دا دوزخ) .

وَيْلٌ لِكُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ (7) يَسْمَعُ آيَاتِ اللَّهِ تُتْلَى عَلَيْهِ ثُمَّ يُصِرُّ مُسْتَكْبِرًا كَأَنْ لَمْ يَسْمَعْهَا فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (8). [3]

ترجمة: خرابي هلاكت افسوس دى هر دروغ تړونكي ګنهګار ته چې آوري آيتونه (د قدرت د) الله چې لوستل كيږي پر ده بيا لا ښه كلک شي (په كفر خپل) په دې حال كې چې متكبر (ګرځېدونكى وي له ايمانه) دى لكه چې ئې نه دى آورېدلي هغه (آيتونه) پس زيرى وركړه ده ته په عذاب دردناک سره .

وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا أَفَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي تُتْلَى عَلَيْكُمْ فَاسْتَكْبَرْتُمْ وَكُنْتُمْ قَوْمًا مُجْرِمِينَ (31) وَإِذَا قِيلَ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيهَا قُلْتُمْ مَا نَدْرِي مَا السَّاعَةُ إِنْ نَظُنُّ إِلَّا ظَنًّا وَمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِينَ (32) وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا وَحَاقَ بِهِمْ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ (33) وَقِيلَ الْيَوْمَ نَنْسَاكُمْ كَمَا نَسِيتُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَذَا

---

[1] سورة الزمر
[2] سورة الغافر (المؤمن)
[3] سورة الجاثية

وَمَأْوَاكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِنْ نَاصِرِينَ (34) ذَلِكُمْ بِأَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ آَيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا وَغَرَّتْكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُونَ مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ (35) . [1]

ترجمة: او هر څه هغه کسان چې کافران شوي دي (وبه ویل شي دوی ته داسې) آیا نه وو آیتونه (د قرآن) زما چې لوستل کیدل به پر تاسې باندې پس تکبر مو وکړ (او ایمان مو پرې نه راووړ) او وئ تاسې قوم ګنهګاران (کافران) او هر کله چې وبه ویل شو (تاسو ته اې کفارو چې) بېشکه وعده د الله حقه ده (په ژوندون سره) او قیامت نشته شک په (راتلو) د هغه کې نو وبه ویل تاسې نه پوهېږو چې څه شی دی قیامت ګمان نه کوو مګر ګمان لږ او نه یو مونږ یقین کوونکي (په راتلو د قیامت) او ښکاره به شي (په قیامت کې ) دوی ته نا کاره والی (بدې جزاوې) د هغو (بدو اعمالو) چې کړي وو دوی (په دنیا کې) او چاپېر (نازل) به شي په دوی عذاب هغه چې وو دوی چې په هغه پورې به یې مسخرې کولې او وبه ویل شي چې نن ورځ به هېر کړو (پرې به ږدو) مونږ تاسې (په دوزخ کې) لکه چې هېر کړی وو تاسې ملاقات د ورځې ستاسې دغه (چې ورځ د قیامت ده) او ځای ستاسې اور دی او نشته تاسو ته هېڅوک له مددګارانو (چې مو ترې خلاص کړي) دغه (تعذیب له دې سببه دی) چې بېشکه تاسې نیولي مو وو آیتونه (د قرآن) د الله په ټوکو سره او مغرور کړي وئ تاسې دغه ژوندن لږ خسیس نو نن ورځ وبه نه ایستلی شي دوی له دوزخه او نه به د دوی عذر قبول (او توبه ومنله) شي.

فَالْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ بِمَا كُنتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنتُمْ تَفْسُقُونَ (20). [2]

---

[1] **سورة الجاثية**
[2] **سورة الاحقاف**

ترجمة: پس نن ورځ به جزاء درکوله شي تاسې ته د عذاب سپکوونکي په سبب د هغې چې وئ به تاسو (په دنیا کې) چې تکبر لوئي به مو کوله په زمکه کې په ناحقه سره او په سبب د هغې چې وئ تاسو چې نافرماني به مو کوله (په دنیا کې) .

## د پلرونو په غلطه لار روان

هغه کسان چې د خپلو پلرونو متابعت پداسې حال کې کوي که هغه په غلطه هم تللي وي دی پسې ځي او پدې اړه حق او نا حق نه ګوري خو چې څه د ده په پلرونو کې رواج وي هماغه کوي نو د داسې کسانو لپاره په کار دي چې د خپلو پلرونو رواجونه د اسلامي شریعت سره مقایسه کړي او هغه څه تربنه قبول کړي چې شریعت یې اجازه ورکوي او هغه کسان چې په هرڅه کې د خپلو پلرونو متابعت کوي د هغوی لپاره هم دوزخ دی الله فرمايي:

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءنَا أَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطَانُ يَدْعُوهُمْ إِلَى عَذَابِ السَّعِيرِ (21). [1]

ترجمة: او کله چې وویل شي دوی ته چې متابعت وکړئ په صدق سره د هغه (قرآن) چې نازل کړی دی الله نو وائي دوی نه! بلکه متابعت کوو د هغه شي چې موندلي وو مونږ په هغه شي پلرونه خپل (نو وايي الله ) آیا (متابعت کوي دوی د پلرونو) اګر که وي شیطان بولي دوی (یا پلرونه د دوی) په طرف د عذاب د دوزخ (بلکه متابعت دې نه کوي) .

## نا شکره

---

[1] سورة لقمان

هغه کسان چې د الله د نعمتونو شکر نه کوي د هغه کسانو لپاره هم دوزخ یاد کړی شوی دی الله فرمایي:

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُواْ نِعْمَةَ اللّهِ كُفْرًا وَأَحَلُّواْ قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ (28) جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا وَبِئْسَ الْقَرَارُ (29).[1]

ترجمة: آیا نه یې خبر نه ګورې ته هغو کسانو (د کفارو) ته چې بدل کړی ئې دی نعمت د الله په ناشکري سره (په اختیار د کفر) او را ښکته کړی دی دوی قوم خپل په دار د هلاک کې چې دوزخ دی داخل به شي دوی په هغه اور کې او بد ځای د قرار او هستوګنځی دی (دا دوزخ).

أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ (24).[2]

ترجمة: (نو وبه ویل شي دوو فرښتو ته) وغورځوئ تاسې په دوزخ کې هریو کافر عناد کوونکی.

## حق نه آوریدونکی

هغه کس چې حق نه آوري او کله چې ورته حق ویل کیږي نو دی ورته غوږ نه نیسي دداسې کسانو لپاره هم دوزخ یاد کړل شوی دی الله فرمایي:

وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا أُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ (6) وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِ آيَاتُنَا وَلَّى مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا كَأَنَّ فِي أُذُنَيْهِ وَقْرًا فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (7). 3

ترجمة: او (ځینې) له خلقو څخه هغه څوک دي چې پیري اخلي عبثې خبرې (اړوونکې له حق څخه) د

---

1 سورة ابراهيم
2 سورة ق
3 سورة لقمان

پاره د دې چې وښويوي (خلق) له لارې د الله نه بې له علمه (په عاقبت د فعل خپل) او چې ونيسي دا (لاره يا آيتونه) په ټوکو مسخرو ، دغه (کسان) شته دوی ته عذاب سپکوونکی او کله چې ولوستل شي په ده باندې آيتونه (د قرآن) زمونږ نو وګرځوي ترې مخ حال دا چې متکبر غاړه غړوونکی وي داسې چې ګواکې له سره ئې نه دي آوريدلي (دا آيتونه) ګواکي په دواړو غوږونو د ده کې درونډوالی کونوالی دی پس زيری يعني خبر ورکړه ته هغه ته په عذاب دردناک سره .

وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالإِنسِ لَهُمْ قُلُوبٌ لاَّ يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لاَّ يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لاَّ يَسْمَعُونَ بِهَا أُوْلَئِكَ كَالأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ أُوْلَئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ (179) . [1]

ترجمة : او خامخا په تحقيق پيدا کړي دي مونږ د پاره د دوزخ ډېر کسان له جن ((پېريانو)) او له انسانانو چې دي دوی لره (داسې بې معنی) زړونه چې هېڅ نه پوهېږي دوی په هغو سره (حق له باطله) او دي دوی لره (داسې بې فايدې سترګې چې نه ويني دوی په هغو سره (نښې د قدرت) او دي دوی لره (داسې بې کاره) غوږونه چې نه آوري په هغو سره (آيتونه د الله ) دغه کسان په شان د چارپايانو دي (د نفساني امورو په اتباع) بلکه دوی (چې مکلفان دي) ډېر ګمراهان دي (له چارپايانو څخه) دغه کسان هم دوی دي غافلان (کاملان په بې خبری کې)

وَيْلٌ لِّكُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ (7) يَسْمَعُ آيَاتِ اللَّهِ تُتْلَى عَلَيْهِ ثُمَّ يُصِرُّ مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (8) . [2]

ترجمة : خرابي هلاکت افسوس دی هر دروغ تړونکي ګنهګار ته چې آوري آيتونه (د قدرت د) الله چې

---

[1] سورة الاعراف
[2] سورة الجاثية

لـوستل کـيـبږي پـر ده بـيـا لا ښه کـلـک شي (پـه کفـر خـپل) پـه دې حـال کـې چې مـتـکبـر (گـرځېدونـکی وي لـه ايـمانـه) دی لـکـه چې ئـې نـه دی آوريـدلـي هغـه (آيـتونـه) پس زيـری ورکـړه ده تـه پـه عذاب دردنـاک سره .

# فرقه پیدا کونکی

هغه کس چې په اسلام کې د فرقې او ډلې پیدا کولو کوښښ کوي او پدې سره مسلمانان په ډلو تقسیم کوي د داسې کس لپاره هم دوزخ دی الله فرمايي :

وَلاَ تَكُونُواْ كَالَّذِينَ تَفَرَّقُواْ وَاخْتَلَفُواْ مِن بَعْدِ مَا جَاءهُمُ الْبَيِّنَاتُ وَأُوْلَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ (105). 1

ترجمة: او مه کېږئ تاسې په شان د هغو کسانو چې سره جلا (جدا) شول او اختلاف (جګړې) ئې وکړې د دین په اصولو کې وروسته له هغه چې راغلي وو دوی ته دلائل ښکاره (د اسلام د حقیقت) او دا متفرقان مختلفان مقرر دي) دوی ته عذاب ډېر لوی (د دوزخ).

# بخل کونکي

انسان ته ټول مال او هر نعمت الله ورکړی دی خو کله چې د الله په لار کې د مال مصرف ته ضرورت شي مسلمان يې بايد په خوشحالي مصرف کړي لکه صحابه کرام مو به چې کول هغه کسان چې پدې ځای کې په خپل مال باندې بخيلي کوي او د الله د دين د ترقي په لاره کې يې نه مصرف کوي دې کسانو ته هم دوزخ ياد شوی دی الله فرمايي:

وَلاَ يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللّهُ مِن فَضْلِهِ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُواْ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلِلّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ وَاللّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ (180). [2]

---

1 سورة آل عمران

2 سورة آل عمران

ترجمة: او ګمان دې نه کوي له سره هغه کسان چې بخیلي کوي دوی په هغه شي چې ورکړي دي دوی ته الله له فضله خپله چې دا بخل خیر دی (غوره دي) دوی ته بلکه دا (بخل ډېر بد) شر دی دوی ته ژر به په غاړه کې ورته امیل کړ شي هغه چې بخیلي کړې ده دوی په هغه شي کې په ورځې د قیامت او خاص الله لره دی میراث د آسمانونو او د زمکې (د دغو دواړو د اهل له فنا څخه به وروسته هرڅه هم هغه حقیقي وارث او مالک ته پاتې کیږي او الله پر هغو (کارونو هم) چې کوئ یې تاسې ښه خبردار دی (نو د ټولو جزابه درکړي).

وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا (36) الَّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُونَ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُهِينًا (37) وَالَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَنْ يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا فَسَاءَ قَرِينًا (38). [1]

ترجمة: او عبادت کوئ تاسې د الله او مه شریکوئ تاسې له ده سره هېڅ شی او (نیکي کوئ) له مور او پلار سره نیکي او (نیکي کوئ) له خاوندانو د خپلوي سره او (نیکي کوئ) له همسایه ګانو سره چې قریب وي (په نسب یا په همسایګي کې) او (نیکي کوئ) له همسایه سره چې لرې وي (په نسب یا په همسایګي کې) او (نیکي کوئ) له هغه ملګري سره چې په څنګ کې وي او (نیکي کوئ) له مسافرو سره او (نیکي کوئ) له هغو وینزو او مریو سره چې مالکان وي (ورلره) ښي لاسونه ستاسې بېشکه چې الله نه خوښوي هغه څوک چې کبر کوونکي ډېر فخر کوونکي هغه کسان چې بخیلي کوي دوی او امر کوي (نورو) خلقو ته (هم) په بخیلي (شومتیا) سره او پټوي دوی هغه شی چې

---

[1] سورة النساء

ورکړي دي دوی ته الله له مهرباني خپلې او تيار کړی دی مونږ کافرانو ته عذاب سپکوونکی او نه (خوښوي الله ) هغه کسان چې صرفوي دوی مالونه لپاره د ښوونې خلکو ته او نه لري ايمان په الله باندې او نه په ورځ د آخرې (د قيامت) باندې او هرڅوک چې وي شيطان ده لره ملګری نو بد ملګری دی (دا شيطان)

وَقَالَ قَرِينُهُ هَذَا مَا لَدَيَّ عَتِيدٌ (23) أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ (24) مَنَّاعٍ لِلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُرِيبٍ (25).[1]

ترجمة: او وبه وايي ملګرې دده (فرښته) دا دي هغه شی چې ما سره حاضر دي (د دفاترو د اعمالو دده) (نو وبه ويل شي دوو فرښتو ته) وغورځوئ تاسې په دوزخ کې هر يو کافر عناد کوونکی منع کوونکی د خير.

## لهويات خپرونکی

هغه کس چې په خلکو کې د سمو او نېکو خبرو په ځای لهو او بې فايدې شيان خپروي او اخلي يې لکه سندرې ، فلمونه، ډرامې ، د ښځو تصويرونه او داسې نور او ددې په ځای ترينه د نېکو خبرو اسلامي نصيحتونو او وعظونو خپرول پاتې وي د داسې کسانو لپاره هم دوزخ دی الله فرمايي :

وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا أُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ (6).[2]

ترجمة: او (ځينې) له خلقو څخه هغه څوک دي چې پيري اخلي عبثې خبرې (اړوونکې له حق څخه) د پاره د دې چې وښويوي (خلق) له لارې د الله نه بې

---

1 سورة ق
2 سورة لقمان

له علمه (په عاقبت د فعل خپل) او چې ونيسي دا (لاره يا آيتونه) په ټوکو مسخرو ، دغه (کسان) شته دوی ته عذاب سپکوونکی.

## مال جمع کونکی او نه مصرف کونکی

هغه کسان چې مال جمع کوي او د هغه نه مصرف نه کوي او د مال مينه يې په زړه کې ننوتلې وي د مال داسې مينه والو ته هم دوزخ ياد کړل شوی دی الله فرمايي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آَمَنُوا إِنَّ كَثِيرًا مِنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (34) يَوْمَ يُحْمَى عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُونَ (35). [1]

ترجمة : اې هغو کسانو چې ايمان ئې راوړی دی (يعني اې مؤمنانو!) بېشکه ډېر له عالمانو ((د يهودانو) او عابدانو ((د نصرانيانو)) خامخا خوري دوی مالونه د خلقو په باطل ((رشوت)) سره او منع کوي خلق له لارې د الله څخه او هغه کسان چې خزانه کوي سره زر او سپين زر او نه لګوي هغه په لاره د الله کې (د دين د ترقي د پاره) نو زيری ورکړه دوی ته په عذاب دردناک سره په هغې ورځې چې سختي سرې به کړې شي دغه خزانې په اور د دوزخ کې نو داغلی به شي په هغه سره تندي د دوی او اړخونه د دوی او شاګانې د دوی (او ورته به ويل کيږي) دا هغه شی دي چې خزانه کړي وو تاسې د پاره د نفسونو خپلو نو و څکئ تاسې (خوند د سزاد) هغه (مال) چې وئ تاسې چې خزانه کاوه به مو (په دنيا کې اوس درته بلا شوه په عقبا کې) .

[1] سورة التوبة

# ریا کار

هغه کس چې د ځان ښکاره کولو لپاره خپل مال مصرف کوي ترڅو یې خلک ووینې چې دا خو داسې قرباني ورکوي او کله چې داسې ځای راشي چې هلته یې دده قرباني خلکو ته نه ښکاره کیږي هلته بیا مصرف نه کوي د داسې ریا کار سزا هم دوزخ دی الله فرمایي:

الَّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُونَ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُهِينًا (37) وَالَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَنْ يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا فَسَاءَ قَرِينًا (38). [1]

ترجمة: هغه کسان چې بخیلي کوي دوی او امر کوي (نورو) خلقو ته (هم) په بخیلي (شومتیا) سره او پټوي دوی هغه شی چې ورکړي دي دوی ته الله له مهرباني خپلې او تیار کړی دی مونږ کافرانو ته عذاب سپکوونکی او نه (خوښوي الله ) هغه کسان چې صرفوي دوی مالونه لپاره د ښوونې خلکو ته او نه لري ایمان په الله باندې او نه په ورځ د آخرې (د قیامت) باندې او هرڅوک چې وي شیطان ده لره ملګری نو بد ملګری دی (دا شیطان).

## په دار الحرب کې اوسیدونکي

پداسې حالت کې چې یو دار الحرب او دار الکفر وي خو ورسره دا رالاسلام قائم شي چېرته چې مسلمانان په ښه توګه ټول عبادات سره ته رسولی شي او د اسلامي بیرغ لاندې د ویاړ او عزت ژوند کولی شي خو ددې سره سره مسلمانانو ته دلته اوسېدل همداسې میسر وي لکه په دار الحرب کې نو چې بیا هم څوک په دار الحرب کې ژوند خوښوي

---

[1] سورة النساء

نـو دي کسانـو تـه هم د دوزخ عذاب يـاد کړل شوی دی الله فـرمـايـي :

إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلآئِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ قَالُواْ فِيمَ كُنتُمْ قَالُواْ كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الأَرْضِ قَالْوَاْ أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُواْ فِيهَا فَأُوْلَئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَسَاءتْ مَصِيرًا (97)إِلاَّ الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاء وَالْوِلْدَانِ لاَ يَسْتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلاَ يَهْتَدُونَ سَبِيلاً (98)فَأُوْلَئِكَ عَسَى اللّهُ أَن يَعْفُوَ عَنْهُمْ وَكَانَ اللّهُ عَفُوًّا غَفُورًا (99). [1]

تـرجـمـة : بـې‌شکـه هغـه کسـان چې وفـات کـړي وي دوی لـره مـلائـکـو (دمـرګ) پـه داسې حـال کې چې وي دوی ظلم کـوونـکي پـه ځانـونـو خپـلـو وايـي ورتـه (مـلائـکـې) پـه کـوم حـال کې وئ تـاسې (پـه خپـلـو ديـنـي چارو کې؟) وائـي دوی چې وو مـونـږ ضعيفـان کـړل شوي پـه زمکـه کې (د کفـارو پـه لاس بـيـا مـلائـکـې ورتـه) وايـي چې آيـا نـه وه زمـکـه د الله فـراخـه پس هجرت بـه کـړی وی تـاسې پـه دې (زمـکـه کې) نـو دا (تـارکـان د هجرت) ځـای د دوی دوزخ دی او نـا کـاره ځـای د ورتـلـو دی (دا دوزخ) مـګـر (نـه بـه عذابـيـږي) هغـه چې پـه رښـتـيـا سره ضعيـفـان عاجزان (چې دي) ښايـي چې الله (يـعـنـي هيـلـه ده لـه الله چې) عفـوه وکـړي لـه (ګـنـاهـونـو د) دوی نـه او دی الله ښه عفـوه کـوونـکی (د مـعـذورانـو) ښه بـښـونـکی (د خطيـاتـو)

## د مـال مـيـنـه کـونـکـی ، هُمـزة او لُـمـزة

هغـه کس چې د مـال سره يـې ډېـره مـيـنـه وي او د دولـت سره مـيـنـه کـوي او د مـال سره يـې داسې اطمـنـان کـيـږي لـکـه دا مـال چې لـده سره د ټـول عمـر لـپـاره مـلـګـری وي او هغـه کس چې پـه خـلـکـو تـهـمـتـونـه لـګـوي او د خلـکـوي د عيـبـونـو د لـټـولـو کـوښښ کـوي د داسې خلـکـو لـپـاره هم د دوزخ سزا يـاده کـړل شويـده الله فـرمـايـي :

---

[1] **سورة النساء**

وَيْلٌ لِكُلِّ هُمَزَةٍ لُمَزَةٍ (1) الَّذِي جَمَعَ مَالًا وَعَدَّدَهُ (2) يَحْسَبُ أَنَّ مَالَهُ أَخْلَدَهُ (3) كَلَّا لَيُنْبَذَنَّ فِي الْحُطَمَةِ (4) وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْحُطَمَةُ (5) نَارُ اللَّهِ الْمُوقَدَةُ (6) الَّتِي تَطَّلِعُ عَلَى الْأَفْئِدَةِ (7) إِنَّهَا عَلَيْهِمْ مُؤْصَدَةٌ (8) فِي عَمَدٍ مُمَدَّدَةٍ (9). [1]

ترجمة: افسوس هلاک یا کنده د دوزخ یا خرابي ده هر غیبت ګر عیب ګر لره هغه (غیبتګر عیبګر) چې جمع کړی ئې دی مال او وار وار ئې شمېرلی او ذخیره کړی ئې دی ګمان کوي چې بېشکه مال د ده به تل ژوندی لري دی نه ده داسې (بلکه مړ به شي او خلاص به ئې نه کړي دا مال له عذابه) قسم دی چې وبه غورځول شي هرو مرو (خامخا) دا جمع کوونکی په هغه شي کې چې ما توونکی سوزوونکی دی د هر شي او څه شي پوه کړی ئې ته څه شی دی ماتوونکی سوزوونکی د هرشي؟ اور د الله دی بل کړل شوی هغه (اور) چې خیږي په زړونو باندې (نو سوزوي ئې) بېشکه دا اور به په دوی باندې بند کړل شوی وي په ستنو را ښکلیو شویو اوږدو سره.

## زیات ګناهونه کونکی

هغه کس چې په قیامت کې یې د نیکیو تله سپکه او د ګناهونو تله درنده شي هغه به هم دوزخ ته ځي الله فرمایي:

وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ فَأُوْلَئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ فِي جَهَنَّمَ خَالِدُونَ (103). [2]

ترجمة: او هر هغه څوک چې سپکې ئې وختلې تلې (یا تللي عملونه) د ده (چې وزن نه کړي په نزد د الله ) پس دا هغه کسان دي چې زیان ئې کړی دی د نفسونو خپلو (په کفر او عصیان سره اوس دوی) په دوزخ کې به تل پراته وي.

---

[1] سورة الهمزة
[2] سورة المؤمنون

وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ (8) فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ (9) وَمَا أَدْرَاكَ مَا هِيَهْ (10) نَارٌ حَامِيَةٌ (11).[1]

ترجمة: او هر څه هغه څوک چې سپک شي وزن (د عملونو يا اعمال) د ده نو مور ده (ځای د اوسېدلو د ده) به هاويه وي او څه شي پوه کړې ته څه ده دغه (هاويه) اور دی خورا (ډېر) تود (چې منکران پکې پړمخې غورځول کيږي).

## نبوي احاديث

هغه ګناهونه چې په احاديثو کې يې سزا دوزخ ياد شوی دی

دوزخ ته به هغه ګناهکاران مسلمانان هم ځي چې ګناهونه يې کړي وي لکن د الله توحيد يې منلی وي او له هغه سره يې په هېڅ ډول شريک نه وي منلی لکن دوی به وروسته د الله په رحم او د شفاعت کونکو په شفاعت بېرته له دوزخ څخه را کښل کيږي په هغې کې ځينې هغه ګناهونه چې رسول الله ﷺ ورته دوزخ ياد کړی دی په لاندې ډول دي :

## له سنتو مخالفت

هغه کسان چې له مقدسې لارې او له سنتو څخه مخالفت کوي او دخپلو خواهشاتو په لاره ځي رسول الله ﷺ د هغه کسانو لپاره دوزخ ياد کړی حضرت معاويه فرمايي يوه ورځ رسول الله ﷺ مونبر ته خطبه ويله او فرمايل يې :

[1] سورة القارعة

إِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ افْتَرَقُوا عَلَى اثْنَتَيْنِ وَسَبْعِينَ مِلَّةً يَعْنِي الأَهْوَاءَ وَإِنَّ هَذِهِ الأُمَّةَ سَتَفْتَرِقُ عَلَى ثَلاثٍ وَسَبْعِينَ مِلَّةً ، يَعْنِي الأَهْوَاءَ اثْنَتَيْنِ وَسَبْعِينَ فِي النَّارِ وَوَاحِدَةٌ فِي الْجَنَّةِ وَهِيَ الْجَمَاعَةُ فَاعْتَصِمُوا بِهَا فَاعْتَصِمُوا بِهَا.[1]

ترجمة : بېشكه ستاسې نه وړاندې اهل الكتاب په ۷۲ فرقو باندې تقسيم شول يعنې د دوى خواهشات وو او دا امت به په ۷۳ ډلو باندې تقسيم شي يعني د خواهشاتو له مخې په دوى كې به ۷۲ په اور كې وي او يوه به په جنت كې وي او هما جماعة دى تاسې په هغې منګولې ولګوئ تاسې په هغې منګولې ولګوئ .

## غلطه فيصله كونكي

الله شريعت ددې لپاره نازل كړى دى چې پدې سره د خلكو په مينځ كې فيصلې وشي او هغه كسان چې د خپلو شخصي اهدافو لپاره دا احكام پريږدي او په غلطه توګه فيصله وكوي دا فيصله كونكى قاضي به دوزخ ته ځي حضرت بريدة بن الحصب فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :

الْقُضَاةُ ثَلاثَةٌ وَاحِدٌ فِي الْجَنَّةِ وَاثْنَانِ فِي النَّارِ فَأَمَّا الَّذِي فِي الْجَنَّةِ فَرَجُلٌ عَرَفَ الْحَقَّ فَقَضَى بِهِ وَرَجُلٌ عَرَفَ الْحَقَّ فَجَارَ فِي الْحُكْمِ فَهُوَ فِي النَّارِ وَرَجُلٌ قَضَى لِلنَّاسِ عَلَى جَهْلٍ فَهُوَ فِي النَّارِ .[2]

ترجمة : قاضيان درى دي يو يې په جنت كې او دوه يې په اور كې دي هغه چې په جنت كې دي هغه كس دى چې حق وپېژني او په هغه باندې فيصله وكوي او هغه كس چې حق و پېژني لكن په هغه فيصله ونه كوي دا كس به په اور كې وي او بل هغه كس چې خلكو په مينځ كې فيصلې د جهل سره

[1] السنة للمروزي
[2] رواه ابو داود

کوي (د قضاء په مسئلو خبر نه وي قضاوت کوي) دا به هم په اور کې وي .

# په رسول الله ﷺ پورې دروغ ویونکی

هغه کس چې په رسول الله ﷺ پورې دروغ وایي یوه خبره په حدیث کې نه وي دی وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي ددې کسانو لپاره هم رسول الله ﷺ دوزخ یاد کړی دی حضرت علی فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **لا تكذِبوا عليّ، فإنه من كَذَبَ عليّ يَلِجِ النارَ.** [1]

ترجمة : په ما پورې دروغ مه وایاست بېشکه چا چې په ما پورې دروغ وویل هغه به اور ته ننوزي .

حضرت سلمة بن الاکوع فرمایي ما له رسول الله ﷺ ځخه واورېدل چې فرمایل یې : **مَنْ يَقُلْ عَلَيَّ مَا لَمْ أَقُلْ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَده مِنْ النَّار .** [2]

ترجمة : چا چې په ما پسې داسې خبره وتړله چې ما نه وه کړې په اور کې د خپل ځای ته ورشي .

حضرت علي فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **مَنْ تَعَمَّدَ عَلَيَّ كَذِبًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَده مِنْ النَّا .** [3]

ترجمة : چا چې په ما پورې قصداً دروغ وویل هغه دې په اور کې خپل ځای ته ورشي .

حضرت مغیرة بن شعبة فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **إِنَّ كَذِبًا عَلَيَّ لَيْسَ كَكَذِبٍ عَلَى غَيْرِي ، فَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَده مِنْ النَّار.** [1]

---

1 **صحيح البخاري**
2 **صحيح البخاري**
3 **متفق عليه**

ترجمة : په ما پورې دروغ ويل داسې نه دي لکه په نورو خلکو پورې دروغ ويل چا چې په ما پورې قصداً دروغ وويل هغه د په اور کې خپل ځای ته ورشي .

## سود خور

هغه کسان چې سود خوري هغه کسان چې د ضرورت په وخت چاته لږ پيسې ورکړي او بيا له هغه نه زياتې اخلي دې کسانو ته هم دوزخ ياد کړل شوی دی رسول الله ﷺ اوه هلاکوونکي ګناهونه شمارول يويې پکې دا هم حساب کړو حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **اجْتَنِبُوا السَّبْعَ الْمُوبِقَاتِ قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا هُنَّ قَالَ الشِّرْكُ بِاللَّهِ وَالسِّحْرُ وَقَتْلُ النَّفْسِ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَأَكْلُ مَالِ الْيَتِيمِ وَأَكْلُ الرِّبَا وَالتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ وَقَذْفُ الْمُحْصِنَاتِ الْغَافِلَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ.** [2]

ترجمة : له اوو هلاکوونکو څخه ځان وساتئ صحابه وو ورته وويل : هغه کوم اوه شيان دي يا رسول الله ﷺ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله سره شريک منل ، سحر ، هغه نفس وژل چې الله يې وژل حرام کړي وي مګر په حقه سره ، د يتيم مال خوړل ، سود خوړل ، د جنګ په ورځ په شا تګ کول ، په داسې ښځو پورې تهمت لګول چې هغوی پاکې بې خبره او مؤمنانې وي .

## تصوير ويستونکي

هغه کسان چې تصويرونه جوړوي ددوی لپاره هم په آخرت کې د دوزخ عذاب او سخت عذاب ياد کړل شوی دی په يو حديث کې حضرت عبد الله بن عمر فرمايي

---

1 **متفق عليه**

2 **صحيح البخاري و مسلم**

رسول الله ﷺ فرمایل : إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْمُصَوِّرُونَ.[1]

ترجمة : بېشکه د قیامت په ورځ به د الله په وړاندې سخت عذاب د تصویر جوړوونکو وي .

حضرت عایشه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : إِنَّ أَصْحَابَ هَذِهِ الصُّوَرِ يُعَذَّبُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ، يُقَالُ لَهُمْ : أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ .[2]

ترجمة : بېشکه ددې تصویرونو صاحبان (چا چې جوړ کړي دي) به د قیامت په ورځ په عذاب کیږي او ورته به ویل کیږي څه چې داسې جوړ کړي دي اوس یې ژوندي کړئ .

---

1 صحيح البخاري
2 متفق عليه

# بې پردې ښځې

هغه ښځې چې جامې يې آغوستې وي خو بيا هم لکه لوڅې داسې وي او په همدې ډول جامه کې د پرديو خلکو په وړاندې ځان ښکاره کوي دې ښځو ته هم رسول الله ﷺ دوزخ ياد کړى دى حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :

صِنْفَانِ مِنْ أَهْلِ النَّارِ لَمْ أَرَهُمَا: قَوْمٌ مَعَهُمْ سِيَاطٌ كَأَذْنَابِ الْبَقَرِ يَضْرِبُونَ بِهَا النَّاسَ. وَنِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ مُمِيلاَتٌ مَائِلاَتٌ، رُؤُوسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ. لاَ يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ وَلاَ يَجِدْنَ رِيحَهَا، وَإِنَّ رِيحَهَا لَيُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ كَذَا وَكَذَا. [1]

ترجمة : دوه ډلې د اهل النار څخه دي ما نه دي ليدلې يو هغه خلک دي چې په لاس کې به يې ڼرې وي لکه د غوايه لکۍ خلک به پرې وهي او بل به ښځې وي چې جامې به يې آغوستې وي لکن لوڅې به وي داسې به وي چې د خلکو ميلان ورته کيږي او دوى هم خلکو ته ميلان کونکې وي سرونه يې لکه د بختي اوښانو کاږه بوکامونه داسې وي دوى به جنت ته نه ننوزي او نه به په دوى باندې د جنت بوى لګيږي بېشکه د جنت بوى د دومره دومره مسافې نه لګيږي .

---

[1] رواه مسلم

# حیوان په عذاب کونکی

هغه کس چې غير ناطقه حيوانات ته تکليف ورکوي او بغير د ضرورت نه هغه په عذاب کوي حضرت جابر فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **عرضت عليّ النار ، فرأيت فيها امرأة من بني اسرائيل تعذب في هرة لها ، ربطتها فلم تطعمها ، ولم تدعها تأكل من خشاش الأرض ، حتى ماتت جوعا .** [1]

ترجمة : ماته اور را ښکاره کړل شو ما پکې د بني اسرائيلو يوه ښځه وليده چې د يوې پيشو په اړه ورته عذاب ورکول کېدو هغه يې تړلې وه خوراک يې نه ورکولو او نه يې پرېښوده چې د زمکې له حيواناتو ځان ته خوراک پيدا کړي تردې چې هغه له لوږې مړه شوه .

علماء تردې حديث لاندې فرمايي دا چې يوه ښځه د يو حيوان د عذاب له امله اور ته ځي هغه کس چې داسې کسانو ته عذاب ورکوي چې هغه مؤمنان وي او نېکان وي د هغوی به څه حال وي؟ او په خاصه توګه چې دا تعذيب هم ددې امله وي چې هغوی ايمان راوړی دی او هغوی اسلام قبول کړی دی .

---

1 **صحيح مسلم**

# د دنیا لپاره علم طلب کونکی

هغه څوک چې یو دیني علم ددې لپاره طلب کوي چې هغه پرې کوم دنیایي مقصد ته ورسیږي دا عمل هم الله ته ډیر بد دی او دا کس هم جنت ته نېږدې نشي ورتلی حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **من تعلم علما مما ينبغي به وجه الله تعالى ، لا يتعلمه إلا ليصيب به عرضا من الدنيا لم يجد عرف الجنة يوم القيامة ، يعني ريحها .** [1]

ترجمة : چا چې داسې علم طلب کولو چې د الله د رضا لپاره طلب کیږي او ده ددې لپاره طلب کړو چې کوم دنیاوي مطلب ته پرې ورسیږي د قیامت په ورځ به هغه ته د جنت بوی هم نه ور رسیږي .

حضرت ابن عمر فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **من تعلم علما لغير الله أو اراد به غير الله ، فليتبوأ مقعده من النار.** [2]

ترجمة : چا چې د علم طلب د الله د رضا نه بغیر د بل کوم شي لپاره وکولو هغه د په دوزخ کې خپل ځای ته ورشي .

---

1 **رواه ابي داود**

2 **رواه الترمذي**

# د زرو په لوښو کې خوراک او څښاک کونکی

هغه کس چې د سرو او سپینو زرو په لوښو کې اوبه څښي او د مسلم په یو روایت کې دا هم ورسره زیات شوي دي چې د سرو او سپینو زرو په لوښو کې خوراک کوي دې کسانو ته هم د دوزخ سزا یاده کړل شویده د حضرت ام سلمة څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایل : **الذي يشرب في آنية الذهب والفضة إنما يجرجر في بطنه نار جهنم.** [1]

ترجمة : هغه چې د سرو او سپینو زرو په لوښو کې څښاک کوي د هغه په ګیډه کې اور اوازونه کوي .

د حضرت حذیفة څخه روایت دی هغه فرمایي له رسول الله ﷺ څخه واورېدل فرمایل یې : **لا تلبسوا الحرير والديباج ولا تشربوا في آنية الذهب والفضة ، ولا تأكلوا في صحافها ، فإنها لهم في الدنيا ، وهي لكم في الآخرة.** [2]

ترجمة : ورېښم مه آغوندئ او د سرو او سپینو زرو په لوښو کې څښاک مه کوئ د سرو او سپینو زرو په کاسو کې خوراک مه کوئ بېشکه دا لوښي ددوی (کفارو) لپاره په دنیا کې دي او ستاسې لپاره په آخرت کې دي .

# سدرة نومي ونه پرې کونکی

سدرة یوه داسې ونه ده چې خلک د هغه له سیوري نه فایده اخلي هغه کس چې دا ونه قطع کړي او له خلکو نه د هغې د سیوري فایده بنده کړي نو

---

1 **رواه البخاري**
2 **متفق عليه**

دې کس ته هم د اور د سزا خبر ورکړل شوی حضرت عبد الله بن حبيش فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :
**من قطع سدرة صوب الله رأسه في النار .** [1]

ترجمة : چا چې سدرة ونه پرې کړه الله به يې سر اور ته ور سيده کړي.

## د خپل ځان قاتل

هغه څوک چې د دنيا د ژوند نه په تنګ شي او خودکشي وکوي د هغه کس لپاره هم د دوزخ عذاب ياد کړل شوی دی حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **من قتل نفسه بحديدة ، فحديدته في يده ، يجأ بها في بطنه في نار جهنم خالدا مخلدا فيها أبدا ، ومن قتل نفسه بسم، فسمه في يده يتحساه في نار جهنم خالدا مخلدا فيها أبدا ، ومن تردى من جبل فقتل نفسه فهو يتردى في نار جهنم خالدا مخلدا فيها أبدا .** [2]

ترجمة : چا چې خپل ځان په وسپنه سره قتل کړو هغه وسپنه به يې په لاس کې وي خپله ګېډه به پرې وهي د دوزخ په اور کې همېشه به په همدې حالت کې وي ، چا چې خپل ځان په زهرو سره مړ کړو همدا زهر به يې په لاس کې وي همېشه به په اور کې وي همدا زهر به څښي چا چې خپل ځان له غره نه را وغورځاوه او ځان يې مړه کړو هغه به د دوزخ په اور کې ځان له لوړه ځايه غورځوي او پدې حالت کې به همېشه وي .

---

1 **رواه ابو داود**
2 **صحيح البخاري و مسلم**

# مــاخذونــه


1. القرآن الكريم
2. البرهان في علوم القرآن
3. الإتقان في علوم القرآن
4. تفسير القرطبي
5. تفسير ابن كثير
6. تفسير الطبري
7. تفسير المنار
8. كابلى تفسير
9. صحيح البخاري
10. صحيح مسلم
11. سنن الترمذي
12. سنن النسائي
13. سنن أبي داود
14. سنن ابن ماجه
15. سنن الدارمي
16. سنن الدارقطني
17. شرح النووي على مسلم
18. فتح الباري شرح صحيح البخاري
19. حاشية السندي على ابن ماجه
20. عون المعبود
21. تحفة الأحوذي
22. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح
23. السيرة النبوية (ابن هشام)
24. كتاب الشفا بتعريف حقوق المصطفى
25. زاد المعاد
26. البداية والنهاية
27. جامع العلوم والحكم
28. سير أعلام النبلاء
29. بداية المجتهد ونهاية المقتصد
30. بيان المختصر شرح مختصر ابن الحاجب
31. بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع
32. تحفة المحتاج في شرح المنهاج
33. جمع الوسائل في شرح الشمائل
34. رد المحتار على الدر المختار
35. حلية الأولياء وطبقات الأصفياء

36. فتح القدير
37. البحر الرائق شرح كنز الدقائق
38. الأشباه والنظائر على مذاهب أبي حنيفة النعمان
39. القواعد النورانية الفقهية
40. أنوار البروق في أنواع الفروق
41. مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين
42. الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي
43. موعظة المؤمنين من إحياء علوم الدين
44. القاموس المحيط
45. لسان العرب
46. النهاية في غريب الحديث والأثر
47. مختار الصحاح
48. الحاوي للفتاوي

# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد د نبوت معجزې
پښتو
2. ړنګه ځاله پښتو
3. آشیانه سوخته
فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګلیسي
5. دین یې دام دی ددنیا په لار کې اېښی
پښتو
6. فرار از کزار
فارسي
7. له کزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دین نوی مسلمان
پښتو
9. دم ډمکو جي او لیکوال
پښتو
10. ادیان پشت در
فارسي
11. له دروازې تر شا دینونه
پښتو
12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو
13. کفري الفاظ
پښتو
14. کل بچه
فارسي
15. معلومات عمومي فارسي

16. د حج لارښود پښتو او انګليسي
17. محمد رسول الله سيرت اخلاق او پېژندنه پښتو
18. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه اول پښتو
19. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه دوهم پښتو
20. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه دريم پښتو
21. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه څلرم پښتو
22. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه پنځم پښتو
23. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه شپږم پښتو
24. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه اوم پښتو
25. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه آتم پښتو
26. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه نهم پښتو
27. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه لسم پښتو
28. د فقهي کتابونو له پانړو څخه اول پښتو
29. د فقهي کتابونو له پانړو څخه دوهم پښتو
30. د فقهي کتابونو له پانړو څخه دريم پښتو

31. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه څلورم پښتو
32. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه پنځم پښتو
33. د علم حديث مطالعه پښتو او انګليسي
34. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه شپږم پښتو
35. کلمه طيبة پښتو
36. الدعاء پښتو
37. اللهم عربي، پښتو، انګلسي
38. المسجد پښتو
39. قرآني معلومات لمړی برخه پښتو
40. سلام پښتو
41. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه اومه برخه پښتو
42. د وخت اهميت (لمړی برخه) پښتو
43. د وخت اهميت (دوهمه برخه) پښتو
44. د وخت اهميت (دريمه برخه) پښتو
45. الحکمة ١ پښتو
46. الحکمة ٢ پښتو
47. الحکمة ٣ پښتو
48. الحکمة ٤ پښتو

49. حتمي سفر (مرګ) پښتو
50. حتمي سفر (شهادت) پښتو
51. حتمي سفرل (قتل) پښتو
52. حتمي سفر (ځانکدن) ستاسې په لاس کې
53. حتمي سفر (کفن ، غسل ، جنازه) پښتو
54. حتمي سفر (قبر) پښتو
55. حتمي سفر (د قيامت وړي نښې) پښتو
56. حتمي سفر (د قيامت لوې نښې) پښتو
57. حتمي سفر (قيامت) پښتو
58. حتمي سفر (جنت) پښتو
59. حتمي سفر (دوزخ) ستاسې په لاس کې